



## کتاب پیژندنه :


| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | دجهادي ادب ستوري |
| ترتیب او ټولونه: | | نوراحمد سعید |
| خپرونکی | : | فرهنګي کمیسیون |
| تخنیکي چارې : | | م م-م ''نبیل'' |
| دخپرونولړ | : | ۱۳ -------- |
| تیراژ | : | ۳۰۰۰ |
| دچاپ نیټه | : | ۱۴۳۴هق \----۱۳۹۱هش\---- ۲۰۱۳ز، |




عنوان | لړلیک | مخ


| عنوان | | مخ |
|---|---|---|
| د خپرونکي یادښت | ..................................... | ۲ |
| سریزه :عبدالستار سعید | ..................................... | ۷ |
| د پیل ځوخبري :نوراحمد سعید | ..................................... | ۲۰ |
| حمد شریف ----رحمان بابا | ..................................... | ۲۹ |
| نعت شریف ---- خوشحال بابا | ..................................... | ۳۱ |
| احمدالله وثیق | ..................................... | ۳۳ |
| احمد اسلام جار | ..................................... | ۳۹ |
| اکرام الدین مفتون | ..................................... | ۴۳ |
| بدرالدین | ..................................... | ۴۷ |
| بسم الله سحر | ..................................... | ۵۰ |
| بلینده بدرۍ | ..................................... | ۵۲ |
| پیرمحمد کاروان | ..................................... | ۵۵ |
| چینارټکور | ..................................... | ۶۰ |
| حاجي محمد اواب | ..................................... | ۶۳ |
| حنیفه زاهد | ..................................... | ۶۷ |
| (م )خپلواک | ..................................... | ۷۰ |
| درمحمد ګوهري | ..................................... | ۷۳ |
| دوست محمد ګلالی ظهیر | ..................................... | ۷۶ |
| رازمحمد ساقیار | ..................................... | ۸۰ |
| سیف الرحمن مومند | ..................................... | ۸۳ |
| سردارمحمد شکیب | ..................................... | ۸۶ |
| سمیع الله ترون | ..................................... | ۸۹ |
| سمیع الله ایوبي | ..................................... | ۹۵ |
| شپونکی | ..................................... | ۹۷ |
| شریف الله نیکمل | ..................................... | ۱۰۴ |
| شفیق الله مشفق | ..................................... | ۱۰۶ |

| | |
|---|---|
| ضیاءالحق حبیبي | ۱۰۷ |
| عباسي خدرخېل | ۱۱۰ |
| عتیق الله عزیزي | ۱۱۳ |
| عبدالاحد حماد | ۱۱۶ |
| عبدالبصیرعبرت | ۱۲۱ |
| عبدالحنان همت | ۱۲۵ |
| عبدالدیان تکل | ۱۳۰ |
| عبدالرحمن معتصم | ۱۳۳ |
| عبدالرحمن کامران | ۱۳۸ |
| عبدالستارسعید | ۱۴۳ |
| عبدالشکوررشاد | ۱۴۸ |
| عبدالعلي تسل | ۱۵۹ |
| عبدالله ثاقب | ۱۶۳ |
| عرفان الله عرفاني | ۱۶۶ |
| عمرشاه حیدري | ۱۶۹ |
| فضل ولي ناګار | ۱۷۲ |
| فضل هادي سالک | ۱۷۷ |
| محمد یونس خالص | ۱۸۱ |
| محمدحسین مستسعد | ۱۸۸ |
| محمدرسول وطن مل | ۱۹۹ |
| محمدهاشم ذاکر | ۲۰۳ |
| محمداسماعیل عندلیب | ۲۰۶ |
| مریم اکمل ناصري | ۲۱۰ |
| مشفق حریتمل | ۲۱۴ |
| نبیله غزل | ۲۱۶ |
| ولي الله ذهین | ۲۲۳ |

# ډالۍ

دتوري اوقلم هغواتلانوته چي
دلويديځ دعسکري ،فکري
اوفرهنګي يرغل سره په
سپېڅلې مبارزه بوخت دي .
داعلاءکلمة اللّٰه په موخه يې
دنيوي عيش اومادي
امتيازات پرې ايښي او
د دين اووطن څخه
ددفاع سنګرونه يې په
خپلو وينو،اوښکواو
خولو تاوده ساتلي.



# دخپرونکي یادښت

دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چاروکمیسیون ویاړي چي دزمان اومکان په ستونزمن چاپیریال کي یې دکتاب چاپول اوخپرول پیل کړي دي ،فرهنګي کمیسیون دوولس (۱۲ )عنوانه کتابونه په لنډزماني واټن کي چاپ کړي دي ،همدا ستاسو په لاس کي کتاب (دجهادي ادب ستوري )یې دکتاب خپرولودلړۍ دیارلسمه کړۍ ده ،تردې لړمخکي یې «داشغال په وړاندي داسلامي امارت دریځ »په نوم کتاب چي په متن کي یې دعالیقدرامیرالمؤمنین (حفظه الله )پیغامونه ،داسلامي امارت اعلامیې اومرکې اوډل شوي دي او«په افغانستان کي زندانونه اوناویلي حقایق »په نوم کتاب چي په افغانستان کي دننه (بګرام ،پلي چرخي ،کندهارعمومي اوخاص امریکایي محبسونو وضعیت ) اوبهر(دګوانتانامو )زندانونو حالت پکي توضیح شو ی دی ،پرښه کاغذاوښکلي صحافت دچاپ په ګښه پسوللي دي.

فرهنګي کمیسیون اراده لري چي په راتلونکي کي دکتاب چاپولواوخپرولولړۍ لاګړندۍ اوپراخه کړي ،ترڅودهمدې لاري هم دوسله وال جهادپه څېرولسونه په تېره ځوان کهول دلویدیځ دپوځي غوبل ،کلتوري اوفکري یرغل څخه ترممکنه حده وژغوري انشاءالله ،.

دافغانستان اسلامي امارت

فرهنګي کمیسیون

دتالیف اوترجمې څانګه





# سریزه

الحمد لله رب العلمین والصلوة والسلام علی اشرف الانبیاء و المرسلین محمد وعلی آله واصحابه أجمعین

امابعد :

درروند وروربناغلي نوراحمد سعيد صاحب کابو دوه کاله وړاندې راته ویلي وو چې نیت لري داوسنیو جهادي شاعرانو او ادیبانو یوه تذکره ترتیب کړي ، دنوموړي دا اقدام راته خورا ستر او پرځای جهادي ادبي چوپړ وایسېد ، او له هماغې ورځې مې ورسره دهراړخیزې همکارۍ وعده وکړه.سره له دې چې دکتاب دترتیب او دشاعرانو دسوانحو درایوځای کولو دستونزمن کار په مهال مې خپله کړې وعده لکه څنګه چې مناسبه وه پوره نه کړای شوه ، خو جناب سعيد صاحب دې خیریوسي چې دکتاب له ترتیب وروسته یې یو ځل بیا فرصت راکړ ، چې ددې ستر جهادي خدمت له اجرونو څخه یې برخمن شم ، او ترخپلې وسې ونډه په کې واخیستلی شم.څه موده وړاندې سعيد صاحب خپل ترتیب شوی کتاب په ایمیل راولیږه اوویلي وو چې مقدمه ورباندې ولیکم ، سره له دې چې دداسې یوه کتاب لپاره دیوې متوازنې مقدمې لیکل زما تروس او استعداد لوړه خبره وه ، خو داچې سعيد صاحب سره مې دهمکارۍ وعده کړې وه او اوس نوموړي دا پيټی راله غاړې کړی وو نوځکه له ټول بوج سره سره اماده شوم چې دکتاب دمقدمې په دود دا څو کرښې توري کړم .

**شـعـر**

شعر دعربي لغت له مخې ( موزون کلام ) ته وايي او په ادبي اصطلاح (الکلام الموزون المقفی الذي قصد الی وزنه قصدا أوليا ) یعني هغه موزون او قافيه لرونکی کلام چې له پيله يې دموزونوالي قصد شوی وي.

ادیبان دشعر لپاره داضرور بولي چې متکلم به يې ابتداء او بالذات دوزن او قافيې قصد کړی وي ، که چيرې دکوم موزون او مقفی کلام د وزن او سجع لپاره أولي او بالذات قصد وجود ونلري ، نو شعر ورته نه شي ویل کیدای ، له همدې امله خو الهي قول ( الذي انقض ظهرک ورفعنا لک ذکرک ) دغه راز نبوي قول مثلا ( هل أنت الا اصبع دميت

ـ وفي سبيل الله مالقيت ) شعر نه شي بلل کيدای ، او دا له دې الهي فرمان سره په تناقض کې نه ده چې الله تعالی فرمايي ( وماعلمناه الشعر ومایںبغی له )

اهل منطق بيا د شعر په لوړ تعريف يوڅه زياتونه کوي دوی وايي ( الشعر هو قول مؤلف من أمور تخييلية يقصد به الترغيب والتنفير و يحصل للنفس منها القبض والبسط ) شعر له خيالي امورو څخه يو مرکب کلام دی ، چې د ترغيب او تنفير لپاره ويل کيږي او په انساني نفس د خوښي يا خفګان اثر غورځوي ، منطقيان په شعر کې خيال او تخييل يو مهم عنصر ګڼي ، دوی هر کلام چې تخييلي ماهيت ولري شعر بولي حتی که موزون او مقفی هم نه وي ، له همدې ځايه دوی شعر په دوه ډوله تقسيموي چې يو ( مسجع شعر ) او بل ( منثور شعر ) بولي ، منثور شعر داوسني ازاد يا سپين شعر مرادف بللی شو ، چې شاعر په کې قافيې او رديف ته ځان ژمن نه بولي .

## دشعر ديني حيثيت

په شرعي لحاظ د شعر لپاره دا قاعده تقريبا يو اصل بلل کيږي چې (الشعر کلام حسنه حسن و قبيحه قبيح ) شعر د کلام يو ډول دی چې ښه يې ښه دی او بد يې بد دی ، دشعراو شاعرانو په اړه په قرانکريم او نبوي احاديثو کې دبل هرفن د ماهرينو غوندې دوعد او وعيد دواړو اثار شتون لري ، الله تعالی د سورت الشعراء په پای کې په څو آيتونو کې شاعران په دوو ډلو ويشلي دي ، دلومړۍ ډلې په اړه الله تعالی فرمايي ( (والشعراء يتبعهم الغاوون ، الم ترأنهم فی کل واد يهيمون ، وانهم يقولون ما لايفعلون ) ) «دشاعرانو پيروي ناپوهان کوي ، ته دوی نه وينې چې په هره کنده کې سرګردانه ګرځي او دوی هغه څه وايي چې کوي يې نه».

دمفسرينو په اتفاق الله تعالی دا آيتونه دګمراه ، فاسقو او فاجرو شاعرانو په اړه نازل کړي دي ، وروسته الله تعالی صالح ، مؤمن او مجاهد شعراء له نورو شعراء مستثنی کوي او فرمايي (( الا الذين آمنو وعملوا الصلحت وذکروا الله کثيرا وانتصروا من بعد ما ظلموا ) ) مګر هغه شاعران په دې حکم کې نه دي چې مؤمنان دي ، نيک اعمال کوي ، دالله ذکر ډير کوي ، او دوی انتقام اخلي په شعر سره وروسته له دې چې ددوی سره ظلم شوی ( هجو يې شوې ده )



دلوړ آیت په استناد ټول مفسرین په دې اتفاق لري ، چې د شعر په اړه علی الطلاق دښه یا بد حکم نه شي کیدای بلکې دمحتوا ، مضمون او هدف په لحاظ په قبیح او حسن ویشل کیدای شي.

ښه شعر نبي کریم علیه الصلاة والسلام حکمت بللی ، دغه راز په بیابیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم دصحابه کرامو دوخت شعراء تحسین کړي او هغوی یې دکفارو په خلاف شعر ته هڅولي دي.

عن عائشه رضي الله عنها قالت: کان رسول الله صلي الله علیه وسلم ،یضع لحسان منبراً في المسجد یقوم علیه قائماً یفاخر عن رسول الله ،صلي الله علیه وسلم ـ ویقول ـصلي الله علیه وسلم ،ان الله یؤید حسان بن ثابت بروح القدس (رواه الحاکم )حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چې نبي علیه الصلاة والسلام به حضرت حسان ته په مسجد کې منبر کیښود ، هغه به ورباندې ودرېد او نعتیه اشعار به یې ویل ، نبي علیه الصلاة والسلام به ویل ، بې له شکه الله تعالی دحسان تائید په روح القدس سره کوي.

دغه راز دبخاري او ابوداود په احادیثو کې راځي چې نبي علیه السلام به حضرت حسان دمشرکینو خلاف شعر ته هڅاوو او ورته ویل به یې (قل وروح القدس معک اهجهم وجبریل معک ) اشعار وایه روح القدس له تاسره دی په شعر کې دکفارو هجوه بیانوه جبرئل درسره دی.

په یوبل حدیث کې راځي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضرت کعب بن مالک ته وویل اهجهم فإن کلامک اشد علیهم من رشق النبال ( دمشرکینو هجوه بیان کړه بې له شکه ستا کلام ( شعر ) په دوی دغشو ترویشتلو هم سخت اغیز کوي )

داسلامي تاریخ یومعتمد کتاب صحیح السیرة النبویة لیکلي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دمکې دفتحې په ورځ څکه دې ښار ته د ( کداء ) لخوا داخل شو ترڅو دخپل یوه شاعر ملګري ( حضرت حسان قول او ارزو پرځای کړي ) څکه حضرت حسان تردې وړاندې دمکي مشرکینو ته ویلي وو چې

عدمنا خیلنا ان لم تروها
تثیرالنقع موعدها کداء



( زمونږ اسونه دې هلاک شي ، که تاسو يې په کداء باندې دېښو دوړې ونه ليدلې )
حضرت ابن عمر روايت کوي ، چې له کداء څخه مکې ته دداخليدو په مهال نبي کريم صلى الله عليه وسلم داهل مکه وو ښځې وليدې چې دمسلمانانو آسونه يې دټيکريو په پيڅکو شړل ، ددې حالت په ليدو نبي عليه السلام تبسم وکړ او ابوبکر صديق ته يې وويل چې هغه حسان څه ويلي وو ، ابوبکر صديق ورته دحضرت حسان دقصيدې دابيتونه وويل:

تظل جيادنا متمطرات
يلطمهن بالخمر النساء

زمونږ آسونه به دباران دڅاڅکو غوندې پرلپسې اوپه سرعت سره په مکه درځي ، او ستاسو به نارينه تښتيدلي وي نوځکه به يې ښځې په ټيکريو منع کوي ) داچې دلته پيښې ټولې هغه رنګه واقع کيږي چې دنبوت شاعر حضرت حسان بن ثابت رضى الله عنه يې وړاندوينه کړې وه ، معلوميږي چې الله تعالى ديوه متدين شاعر ارزوګانې څنګه ترسره کړې دي ، چې بيا له همدې ځايه له شرعي او ديني ليدلوري ديوه متدين او مجاهد شاعر مقام هم ارزولی شو .

درسول الله صلى الله عليه وسلم په صحابه ووکې ګڼ شمير شعراء موجود وو ، حسان ابن ثابت ، عبدالله ابن رواحة ، کعب ابن مالک ، کعب ابن زهير او نور له وتليو شاعرانو څخه وو ، دغه راز دنورو ګڼو صحابه کرامو څخه اشعار جوړول او ويل روايت شوي دي ،علامه الوسي په خپل تفسير کې دحضرت ابوبکر صديق ، حضرت عمرفاروق ، حضرت علي او نورو ډيرو صحابه وو دشعر نمونې ذکر کړي دي ، کله چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم رحلت وکړ ، نو حضرت فاطمة الزهراء رضى الله عنها يې په اړه دامرثيه وويله ،

ماذا على من شم تربة أحمد
ان لا يشم مدى الزمان غواليا
صبت على مصائب لوأنها
صبت على الايام صرن لياليا

دغه راز له نورو صحابه کرامو څخه هم ډير اشعار روايت شوي دي ، صحابه کرامو په ډيرو مواردو کې اشعار ويل ددوی دشعر ويلو يو مهم ځای دغزا ډګر وو ، دمبارزې او مکافحې په ميدان کې به اکثره صحابه کرامو حماسي او رزمي اشعار ويل ، او په دې توګه به يې ددښمن دمرعوبولو هڅه کوله.



**حماسي شعر**

شعر دهغه اغیزمنتوب ته په پام سره دجګړې ( تبلیغاتي /رواني جنګ ) له اغیزمنو ابزارو څخه بلل کیږي ، دشعر اثرات په بیلابیلو تاریخي ادوارو کې په بیا بیا لیدل شوي دي او دیوه منل شوي واقعیت بڼه یې غوره کړې ده ، دشعر په مټ ډیر ځله ستر تحولات رامنځته شوي وي ، که په نږدې تاریخ کې وګورو له انګریزانو سره دافغانانو په دوهمه جګړه کې دمیوند دستر جنګ نتیجه دیوې افغانې مجاهدې ( ملالۍ ) دیوې لنډۍ په برکت سرچپه شوه او دناکامۍ په پوله ولاړ افغان لښکر یې دفتحې ترمنزله ورساوو .له همدې امله حماسي ، رزمي او یارجزیه شاعري له ډیر پخوا څخه رواج میندلی او په هر دور کې ورته ډیر اهتمام شوی دی .

که موږ داسلام تاریخ مطالعه کوو ، نو دحماسي ادب او شاعرۍ ډیر امثال په مخه راځي ، درسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه دصحابه کرامو له دوره نه رانیولې بیا تر نن پورې شعر همیشه دتورې سره یوځای په جهادي ډګر کې کاریدلی دی ، او دیوې جهادي وسلې او وسیلې په توګه ورڅخه استفاده شوې ده .

نبوي لښکر چې کله دحنین په ډګر دبنوثقیف له ناڅاپي برید سره مخامخ کیږي او له رسول الله صلی الله علیه وسلم او څوتنو صحابه وو پرته ټول لښکر په شاتمبیږي نو نبوي غیرت په جوش راځي ، او په دې سخته مرحله کې رجزیه مسجع الفاظ وایي

انـــــا النبـــــي لا كـــــذب
انـــــا ابــــن عبـــــد المطلب

دغه راز دبیلابیلو غزواتو په مهال له صحابه کرامو څخه رجزیه یاحماسي اشعار روایت شوي دي ، حضرت ابودجانه چې کله داحد په ورځ دغزا ډګر ته کوزیږي ، او دمشرکینو په صف برید پیلوی نو تردې وړاندې دااشعار زمزمه کوي

انـــا الـــذي عاهـــدني خليلـــي
دنحـــن بالســـفح لـــدی النخيـــل
ان لا اقـــوم الـــدهر فـــی الكيـــول
اضـــرب بســـيف الله والرســـول





زه هغه څوک یم چې له خپل محبوب ( پیغمبر اکرم صلی الله علیه وسلم ) سره مې تعهد کړی ، هغه وخت چې موږ دغره په لمن کې دخرماوو له ونو سره وو ، چې زه به کله هم په شاتنې صف کې ونه دریږم او زه به دالله او دهغه درسول په توره وهل کوم.

دغه راز له حضرت علي کرم الله وجهه ، حضرت عبدالله بن رواحه ،حضرت سلمة بن الاکوع او نورو ډیرو صحابه کرامو څخه حماسي اشعار روایت شوي چې په بیلابیلو غزاګانو کې یې ویلي دي ، دغه راز دصحابه وو په دور کې ډیر ځله دمسلمانانو او مشرکینو ترمابین دتورې د جګړې په شان دشعر په واسطه هم مقابلې او مناظرې شوي دي ، د حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه مشهوره قصیده ( هجوت محمدا فاجبت عنها ) له مشرکینو سره دیوې شاعرانه جګړې نغد مثال دی.

په فارسي ادب کې دابوالقاسم فردوسي شاهنامه سره له دې چې دماقبل اسلام فارس دبادشاهانو دجنګونو کیسې کوي ، خو په نړیواله سطحه دحماسي شاعرۍ یوه نمونه او منحصر به فرد اثر بلل کیږي ، چې دیوه مسلمان شاعر لخوا نړۍ ته وړاندې شوی دی.

که راشو پښتو شعر او ادب ته په پښتو کې هم دشعر دبلې هرې موضوع په نسبت دحماسي شعر بنسټ او اساس پوخ دی ، دپښتو لومړنی کشف شوی شعر یو وتلی رزمي او حماسي شعر دی ، چې دبل هرپښتو شعر په نسبت اوږد عمرلري. دا شعر چې شاوخوا دیارلس سوه کاله وړاندې دغور دامیرکروړ سوري لخوا ویل شوی یو اوږد حماسي نظم دی چې داسې پیلیږي

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نشته
په هندو سند و په تخار و په کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته

څرنګه چې افغانستان همیشه دپردیو یرغلونو په وړاندې دجهاد او مقاومت ډګر پاته شوی دی ، نو دې رزمي حالت یې په شعر هم اغیز کړی ، او حماسي شعر دافغان اولس دادب دیوه مهم ارزښت په توګه بروز کړی.

دامیر کروړ له حماسې وروسته چې موږ ته دپښتو شعر نورې نمونې په لاس راځي هغه زیاتره په هیواد دمغلو دیرغل دمهال ویل شوي اشعار دي چې ډیری یې حماسي او رزمي رنګ لري ، دبیلګې په توګه دهوتک بابا دا شعر

پــر ســور غــر بــل راتــه نــن اور دی
وګړیــــه جــــور راتـــه پيغـــور دی

هــر کلــي کــور بانــدې مغــل راغــی
هــم پــه غزنــي هــم پــه کابــل راغــی

غښـــتلو ننـــګ کـــړئ دا مـــو وار دی
مغـــل راغلـــی پــــه تلـــوار دی

پـــه پښـــتونخوا کـــې يـــې ناتـــار دی
پرکلـــي کـــور بانـــدې مغـــل راغـــی

خوشال خټک د پښتو ژبې تر ټولو ستر او په نړيواله کچه مشهور شاعر بلل کيږي ،چې لسګونه زره بيته شاعري يې کړې او په يوه قول يې دری سوه اثار ليکلي چې اوس يې يوازې ۱۷ اثار شتون لري ، دنوموړي په اړه نړيوال کتونکي لکه راورټي ، ډار مستټر ، ګريرسين او نور ليکي چې نوموړی دتورې او شعر نه جوړ مختلط روح درلود ، معنی دا چې دنوموړي شاعري د تورې شاعري ده ، سره له دې چې خوشال خټک په ډيرو موضوعاتو کې خپل قلم آزمايلی خو توره او حماسه بيا دنوموړي د شاعرۍ تر ټولو مهمه موضوع ده نوموړی وايي:

چـــې څرګنـــده ســـربازي کانـــدي د تـــورې
زه خوشـحال خټـک تـر هسـې هنـر ځـار شـم

د تورو پـه ميدان کې چې سودا وي د سرونو
هغه زمان مې ګوره تـل بـه سـور وي زمـا آس

لا پـه خـوب کـې پـه لـړزه پريـوزي لـه کټـه
چې د چـا ترغـوږ زمـا د تـورې شـرنګ شـي

چـې نيـولی مـې دا هـوډ د نـام وننـګ دی
کـه لـه خپلـه هـوډه واوړم کنبـزک يـم

د افغـــان پـــه ننـــګ مـــې وتړلـــه تـــوره
ننګيـــالی د زمـــانې خوشـــحال خټـــک يـــم

دخوشحال خټک غونډې د پښتو ادب د منځنۍ دورې نورګڼو شاعرانو هم په خپل هنر کې حماسه پاللې او په بیابیا یې رزمي موضوعاتو ته اشاره کړې ،دبیلګې په توګه رحمان بابا چې تر ډیره یې شاعري په تصوفي او اخلاقي موضوعاتو مشتمله ده خو بیا یې هم حماسه نه ده هیره کړې.

زغــره واغونــده مــلا وتــړه دجنــګ
لــه هغــه پــس مرکــه کــوه دننــګ

وبــې ننګــو تــه دننــګ خبــرې مــه کــړه
یــا ځــان وګڼــه پــه خپلــو وینــو رنــګ

ننګیـالي چې یو ځل مخ کا په کوم لوري
بیـا هـیڅ نـه ګـوري کـوهی دی کـه ګړنـګ

دهمدې دورې یوبل شاعر اوو تلی ملي شخصیت داو سني افغانستان مؤسس احمد شابابا هم چې د خپل وخت و تلی شاعر هم وو ،ګڼ حماسي اشعار لیکلي دي،نوموړی دخپلو فتوحاتو په اړه په یوه شعر کې وایي:

نـن بیـا هسـې د ګلـزار پـه ننـداره ځـم
چـې لـه یـاره سـره خـوښ هـم کنـاره ځـم

چـې بـر کـړی مـې خـدای لاس پـه رقیبـانو
تـرو بـه زه د هنـد پـر لـور پـه تماشـه ځـم

چـې د هنـد د ملکـو فتحـه مـې روزي شـوه
نـور ایـران لـره پـه تـوغ پـه نغـاره ځـم

پـر دا کـړی داد د خـدای نـه شـی پښـیمانه
تـر نګـین مـې ایـران لانـدې شـاهانه ځـم

زه تسـخیر د ولایـت د خـدای پـه داد کـړم
پـه مـدد د حبیـب هـره خـوا تـازه ځـم

چــې زمــا د ولایــت فتحــه روزي شــوه
تـروه بـه څـه د یـار لـه نـازه کنـاره ځـم

احمـد شـاه دنیـا فـاني ګـڼم چـې نشـته
دنیـا پاتـه لـه ایمانـه بـه سـره ځـم

د نولسمې میلادي پیړۍ په وروستۍ نیمایي او د شلمې پیړۍ په لومړیو کلونو کې چې زموږ هیواد په پرلپسې ډول دانګریزي استعمار تربرید ونو لاندې وو ، دغه وخت حماسي او رزمي ادب نوره وده هم وکړه ، او بیلابیلو فورمونو کې حماسي اشعار وویل شول.

که دانګریزانو په وړاندې دافغانانو درزمي شاعرۍ په اړه مفصل بحث کوو ، شاید خبره خورا اوږده شي ، په دې اړه داستاد عبدالله بختاني کتاب( توربریښ ) او دننګیالي بڅرکي کتاب (دافغان انګلیس په دریو جګړو کې رزمي ادبیات ) دکتنې وړ منابع دي ، چې دانګریزي ښکیلاک په وړاندې دافغان اولس دشاعرانه مبارزې او حماسه سرایي په اړه ډیر مطالب احتوا کړي دي.په ټوله کې زموږ دحماسي شاعرۍ داتړلی او ځنځیري بهیر په ډاګه کوي ، چې حماسه او جهادي شاعري زموږ دادب یوه بنیادي او اساسي برخه ده چې د ( لاینفک ) حیثیت لري.

په ډیر تأسف باید ووایو چې زموږ داوسني ادب او کره کتنې ځینې ادعائي سروالان په پوره بي انصافي داخبره کوي چې په پښتو کې حماسي شعر تراوسه نه دی ویل شوی او یاداچې حماسي شعر ته شعر نه شوی ویلی ، بلکې یوازې یې ( شعار ) بللی شو .دغه ښاغلي ډالري حق الزحمو او له یرغلګرو سره ستراتیژیک مواخات دومره تر اغیز لاندې راوستي ، چې اوس هره ممکنه هڅه کوي ، ترڅو استعمارګرو ته ځانونه او خپل اولس په اصطلاح ( ګوسفندي ) معرفي کړي چې تراوسه یې په ادب کې دحماسې څرک نه لګیږي.دغه راز دوی غواړي هغه داولس په ننګ پاڅیدلي او په درد دردیدلي شاعران دشاعرۍ له برمته شوي قلمرو څخه وباسي ، چې په ( هنر دهنر لپاره ) بې معنی او پوچ شعار باندې عقیده نلري بلکې باور لري چې ( هنر باید دژوند او هدف لپاره وي )دغه ښاغلي چې یوازې ورته خپل تارمرغلین بریښي دې ته نه ګوري چې دشعر بنسټ یې په لرغونې دوره کې دامیرکروړ په حماسه ولاړ دی ، له منځنۍ دورې یې که دخوشحال رزمي شاعري لرې شي نو هیڅ نه پاته کیږي ، او په معاصره دوره کې مو دشاعرۍ غوښنه حصه دانګریز او روس ضد له حماسي شاعرۍ څخه جوړه ده.

که چیرې ادب دټولنې دژوند هنداره او شعر داولس غږ وبولو ، نو افغان اولس چې دنړۍ دبل هراولس په نسبت یې جهادي او حماسي افتخارات ډیر دي باید چې شعر یې هم دوګړنیز جوړښت او کردار عیني انځور واوسي ، زموږ اولس په معاصر او تاریخي لحاظ مجاهد اولس دی نوځکه داولس نماینده شاعري هم یوازې جهادي او عامه

اجتماعي شاعري بللی شو ، زموږ د اولس نماینده شاعر نن سبا هغه څوک دی چې د اولس جهادي کردار ، افتخارات ، جنګ ځپلی حالت او ورسره شوې جفاوې د شعر په ژبه یادې کړي ، که څوک په اولس راغلې په دې بده ورځ هم یوازې دیار په سرو شونډو او ګلابي خدوخال کې ډوب وي ، نو دا دمړي سرته له پراټو پخولو پرته بل څه نه شو بللی.

په وروستي تحلیل کې ویلی شو ، چې حماسي او جهادي شعر دنقد دمعاصرو ټیکه دارانو ددعوا خلاف ددوهمې درجې شعر یا ( شعار ) نه دی ، بلکې دا زموږ دادب هغه توکی دی ، چې په دیني او ملي دواړو اعتباراتو سره یې پشتوانه خورا قوي او مضبوطه ده. دد ښمن په خلاف په حماسي شعر سره مقابله او مبارزه کول عینا داسې جهاد دی لکه په توره سره جګړه کول ، لکه څنګه چې په توره سره دجهاد بهیر دخیر القرون له زمانې څخه راپاتې دی ، د شعر په واسطه د جهاد تاریخ هم همدومره اوږد او بهیر یې نه شلیدونکی دی ، چې پرون هم وو ، نن هم روان دی او سبا به هم وي.

## زموږ اوسنی جهادي ادب

وایي شعر هغه توره ده چې څومره یې پخوې همدومره یې تېغ تیره کیږي ، په بله ژبه تجربو ثابته کړه چې ادبیات په تیره شعر په اختناقي ماحول کې ښه وده کوي ، په افغانستان د امریکا په مشرۍ دنړیوالو کفارو برید د افغان مجاهد اولس لپاره یوه داسې آزموینه وه چې ښایي تردې وړاندې کوم اولس نه وي تجربه کړې ، ځکه دابرید خورا هراړخیز ، ناانډوله او سخت ظالمانه وو چې افغان اولس ته یې دبالمثله مقابلې هیڅ لاره چاره ورپرېنښوده ، افغان اولس تش لاسی وو او مقابلې ته یې دټولې نړۍ کفار او منافق مسلمانان له پرمختللیو وسلو ، وسائلو او اقتصاد سره راغلي وو.

دیرغل په لومړیو وختونو کې چې حالت فوق العاده امتحاني وو زما په یاد دي چې دطالبۍ ډیرو ملګرو مو د زړه بړاس د شعر په واسطه سپکاوه ، موږ په یوه مدرسه کې په اطاق کې لس تنه طالبان اوسیدو ، چې پنځو شپږو یې شعرونه لیکل ، دغه راز د شعر او ترانه ویلو مجالسو او غونډو هم خورا زور اخیستی وو. له هماغه مهال نه داشغال په وړاندې دشاعرانه مقابلې بهیر پیل شو ، سره له دې چې دا بهیر په پیل کې له عادي حماسي ترانو ، مرثیو او دفن په لحاظ کمزورو اشعارو څخه پیل شو ، خو وروسته یې کرار کرار وده وکړه ، او نوي بااستعداده شاعران په کې راښکاره شول. که په کمي لحاظ وګورو دامریکایي یرغل په وړاندې دیوولس کلن جهاد حماسي شاعري ښایي بې ساري

او بې سابقې وبولو ، په دې موده کې چې څومره شاعران راټوکیدلي ، څومره اشعار او ترانې ویل شوي او په کیسټو کې نشر شوي ، پخوایي موږ مثال نلرو ، خو په کیفي لحاظ لا هم دا ډګر ډیر کار او خواري ته اړتیا لري ترڅو دجهادي ادب حق لکه څنګه چې رابانديې لازم دی ادا کړای شو .ددې لپاره چې څرنګه کولای شو په دې برخه کې خپله راله غاړې وظیفه په سمه توګه انجام کړای شو ، او شته ستونزې هوارې کړای شو ، فکر کوم همدا ځای به مناسب وي چې خپلې په زړه کې راسره خبرې درسره شریکې کړم.

۱- حماسي یا جهادي شاعري چې موږ یې درسول الله صلی الله علیه وسلم دشاعر ( حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه ) نه راپاته میراث او دنده بولو ، باید چې دهمدغه ستر عنوان حق ادا کړای شي ، یعني لکه څنګه چې دحضرت حسان رضی الله عنه شعر یوازې دالله تعالی درضاء لپاره ، له اسلام ، پیغمبر او نورو دیني مقدساتو څخه ددفاع لپاره وو ، او هیڅ دنیاوي یا شخصي غرض یې نه درلود ، زموږ جهادي شاعري هم باید همداسې وي ، شعر مو باید دشهرت زینه یا شخصیت او حیثیت ګټلو آله نه وي ، دسنن أبوداود روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې که څوک هغه علم چې دالله تعالی درضا سبب ګرځي ددنیاوي غرض لپاره وکاروي ، نو دجنت بوی به هم پیدا نه کړي ، له دې څخه معلومیږي چې هردیني کار د دنیایي غرض لپاره کارول لویه ګناه ده او الله تعالی پرې ناراضه کیږي ، لکه څنګه چې په بالنفس جهاد کې دنیت اصلاح خورا ضروري ګڼل کیږي نو باللسان جهاد هم له دې څخه مستثنی نه دی او باید چې دنیت اصلاح ته په کې همدومره توجه وشي.

۲- دجهادي شعر مضمون او محتوا خورا مهمه ده ، موږ باید لومړی دازده کړو ، چې څه ووایو او څنګه یې ووایو ، دجهادي شعر مضمون مو باید جهادي وي ، او دالقاء انداز یې هم باید داسې وي ، چې جهادي احساسات او غیرت وپاروي ، او ویده ضمیرونه ولړزوي ، نه داچې دعشقي شعرونو غوندې شهواني غریزه تحریک کړي.متاسفانه په ځینو مواردو کې زموږ ځینې جهادي شعرونه او ترانې هم له داسې مزخرفو خیالاتو او تشبیهاتو سره غاړه غړې وي ، چې دجهادي شعر پرځای دعشقي بدلې اطلاق وربانديې کیدلای شي.زه دا نه وایم چې په حماسي شعر کې دې هیڅ دمینې او عشق موضوعات رانه وړل شي ، بلکې زما مطلب دادی چې که داسې موضوعات راوړل کیږي ، باید چې دالقاء انداز ته یې ډیره توجه وشي ، موږ که داستاد فضل ولي ناګار شاعري مطالعه کړو ، په دې

باریکۍ مو ښه سرخلاصیږي ، نوموړي په خپل متدینه شاعري کې خورا پریمانه عشقي مسائل مطرح کړي ، خو په داسې انداز چې یوازې یې دخپل جهادي شعر ښکلاورباندې دوچنده کړې او نور کومه منفي اغیز نه خلق کوي.

۳ - دشاعرۍ په مهال دخومره لیکلو په ځای باید څنګه لیکلو ته توجه وکړو ، متاسفانه زموږ اوسنۍ جهادي شاعري دکمیت له اړخه ترضرورت هم زیاته ده ، خو کیفیت یې ټیټ بریښي ، مجاهد شاعران باید په کمزوري شعر لیکلو قناعت ونه کړي ، باید کوښښ وشي چې که څه هم لږ وي خو په تول پوره او قوي اشعار ولیکل شي ، ترڅو مو ټاکلي اهداف ترلاسه کړي وي.

۴ - دمضمون په لحاظ دپیغام او فکر تشه زموږ دشعرونو یوه له لویو نیمګړتیاوو څخه ده ، زموږ اکثره اشعار په هغو څو معلومو موضوعاتو دي ، چې بیا بیا دمبالغې ترکچې څیړل شوي ، روښانه شوي ، او ستایل شوي دي ، ددې په عوض باید نور جهادي شاعران تربیتي ، فکري او رغنیزو اساسي موضوعاتو ته توجه وکړي ، له شعر نه باید د ځوان نسل داصلاح ، تربیې او جهادي مفکورې داصولي تبلیغ لپاره کار واخیستل شي ، شعرونه مو باید دیوا ړخیزې مبالغې په ځای نور تریوه حده واقعیت بینانه وي ، معلومه ده چې دیوه ټولنیز تحول لپاره داولس دقناعت ، فکر او زړه خپلول لومړی شرط دی ، دشعر په واسطه باید دهمدې ستر هدف لپاره کار وکړو ، دتکرار او تقلید په ځای باید ابتکار ته مخه کړو ، ترڅو په کماحقه شکل دا جهادي مزل لنډ کړای شو.

۵ – هغه جهادي اشعار چې دترانه ویونکو لخوا ترلوستلو وروسته د مبایل ټیلفون په واسطه خپریږي او دټولنې تربیلابیلو قشرونو پورې رسیږي ، د تجربو له مخې همدا اوس دبلې هرې تبلیغاتي وسیلې په نسبت دتبلیغ ښه توکي بلل کیږي ، ځکه اوس مبایل تقریبا هرڅوک لري ، چې ترانې ترینه اوري ، دغه راز په موټر ، موټرسایکل یا نورو نقلیه وسایطو کې دسفر په مهال ایم پي تري استعمالوي ، او اوریدل طبعا د لوستلو ، یا کتلو په نسبت اسانه او هوسا وي چې دټولنې هرفرد یې استعداد لري.په دې وروستیو کې چې کله دافغان اردو دځواکونو لخوا په خارجي عسکرو حملې زیاتې شوې نو د کرزي دحکومت یوه پوځي چارواکي ومنله ،چې زیاتره پوځیان په خپلو مبایلو کې دطالبانو ترانې اوري او همدا ترانې ورته دا احساس ورکوي ترڅو په راغلیو کفارو بریدونه وکړي.له دې څخه ښکاري چې غږیزې ترانې خورا مؤثرې دي ، شاعران او ترانه ویونکي باید له دې فرصت نه



په استفاده په داسې موضوعاتو ، توبيخي او تشويقي اشعار وليکي چې د ټولنې بې لارې اشخاص يا هغه کسان چې د دښمن په تبليغاتو غوليدلي دي، بيرته سمې لارې ته راکش کړي ، دا د دعوت خورا پراخ ميدان دی ، چې بايد ورته خورا اساسي توجه وشي.

**وروستۍ خبره**

ښاغلي ملګري سعيد صاحب دا کتاب د دې لپاره راسپارلی وو چې مقدمه ورته وليکم ، دا دی د سعيد صاحب له پور څخه مې په پورته ليکنه ځان اوزګار کړ ، که مې د مقدمې حق نه وي اداء کړی او بې ځايه مې ستاسو وخت نيولی وي ، هيله ده بښنه راته وکړئ.ستاسو په لاس کې کتاب دقيقا د هغو شاعرانو تذکره ده ، چې د امريکايي يرغل په وړاندې يې په يوه شکل د اشکالو قلمي او شاعرانه مبارزه کړې وي ، په کتاب کې تفاولا د ځينو پخوانيو دورونو شاعرانو اشعارهم را اخيستل شوي دي.دکتاب په اړه قضاوت او نظر لوستونکو ته پرېږدم ، خو دومره وايم چې دا کتاب په همدې مشخصه موضوع کې لومړنی ګام دی ، چې ستر خدمت او بی ساری پرمختګ يې بللی شو .سعيد صاحب ته دي الله تعالی د دې ستر کار اجرونه ورکړي ، چې له ټولو پرتو ستونزو او مشکلاتو سره يې د مجاهدو شاعرانو سوانح راغونډ کړل او ديوې تذکرې په دود يې په کتابي بڼه ترتيب کړل .په دې هيله چې سعيد صاحب په راتلونکې کې هم په دې برخه کې خپلې هڅې ونه سپموي او له قلم څخه يې پاته جهادي او حماسي شاعران هم راوپېژني ، خپلې خبرې رانغاړم ، او تاسو د کتاب لوستو ته رابولم.

په ټول خلوص او درناوي

قاري عبدالستار سعيد

د هجرت کوډله

۳/۱۱/۱۴۳۳ هـ ق

# د پیل ځوخبري

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وكفى والصلوة والسلام على عباده الذين الصطفى ، امابعد:فأعوذبالله من الشيطن الرجيم ،قال الله تبارک وتعالى في القرآن الحكيم:((وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ، أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ، وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُون، إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانْتَصَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ))، [سورة الشعراء ،۲۲۴-۲۲۷ایت]ژباړه «او د شاعرانو پیروي (متابعت )یوازې ناپوهان اوبې لاري کسان کوي. آیا ته نه وینې چې بېشکه دوی دخیال اوخبرو په هره کنده کې لالهانده اوسرګردانه ګرځي ،یعني دحق اوباطل ویلوپروانه ساتي او بېشکه دوی (شاعران ) هغه څه وایي چې په عملي ډګرکي ترې لیري اوسي ، مبالغه اودواقعیت څخه لیري شیان په خپلو شعرونو کې بیانوي ،مګرنه دي بد هغه شاعران چې ایمان یې راوړی دی ،ښه عملونه کوي ، دالله جل جلاله ډېر ذکر کوي، او بدله اخلي دهغه تیري اوظلم چې پردوی شوی وي اوهغه تیري کونکي (ظالمان )به ډیرژرپوه شي چې کوم ځای ته ورتلونکي دي، یعني بدځای ته به ولاړشي پس له مرګ څخه» [کابلی تفسیردوهم ټوک سورة الشعراء]

د پورته ذکرشوو مبارکو ایاتونو له نزول څخه وروسته حسان بن ثابت ، عبد الله بن رواحه او کعب بن مالک رضی الله عنهم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دژړا اوفریاد په حالت کې حاضرشول چې ،ای دالله رسوله ! الله تعالى خوعالم ؤچې موږشاعران یو ،نولکه چې موږهم دزیان کارانو له ډلي څخه یو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل چې :«نه !هغه شاعران په زیان کې نه دي چې ایمان یې راوړی دی ،ښه کارونه کوي ،دالله تعالی ډیرذکرکوي اوپردوی دشوي زیاتي (ظلم) بدله اخلي».

شعر عربي کلیمه ده ، په لغت کې پوهیدلو اوپیداکولو ته وایي ،یاهغه منظوم کلام ته چې دانسان دتخیل پنځونه وي.دشعرپه تعریف کې خوراډیري نظریې موجودي دي ،آن له افلاطون څخه ترنن پوري یې پرواحد تعریف توافق نه دی شوی ،هرچا له خپل لیدلوري ،پوهي اوایډیالوژئ له مخي تعریف کړی دی. په عربي کې لومړی موندل شوی شعریعرب بن قحطان ،په پارسي کې بهرام ګوراوپه پښتوکې امیرکروړویلی دی.

شعر په عربي نړۍ کي د اسلام له راتګ څخه مخکي د ښه او بد د ځلولو او د رقيبو قبايلو ترمنځ د و يارونو او ويرونو معيار او ميزان ؤ ، آن د جګړې په غبار او د تورو په شرنګهار کي به ښکېلو غاړو خپل خپل شاعران حاضر کړي وو چي د شعر په لطيفه ژبه د خپلو جنګياليو احساسات وپاروي او پر مقابل طرف ګوزار او کسات ته يې وهڅوي .

خو د اسلام مقدس دين ؤ چي په خپل نيکمرغه راتګ سره يې د جهالت کرغېړن ټغر ټول کړ ، بشريت ته يې د اسي بې ساري هراړخيزه او تلپاتـه فلاح موندونکې تګلاره او کړنلاره اعلان کړه ، چي د انسان د ژوندانه ټول اړخونه يې احاطه کړي او په خورا معتدل چوکاټ کي يې پولي ورته ټاکلي دي . د حقوقو ، تعليم ، سياست ، تجارت ، زراعت او اقتصاد په څېر يې ادب او ثقافت په تېره شعر او شاعرانو ته هم خپل اصول او ضوابط ټاکلي دي.

ابن عمر رضی الله عنهما روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل :« د يو کس نس چي د زوو څخه ډک شي ښه دی نه له شعر څخه » ، امام ابو داود د دې حديث په شرحه کي ليکي چي :« د شعر څخه د ختيې د ډکوالي مطلب دا دی چي شعر ويل انسان د قران کريم او د الله تعالی له ياد څخه محروم او غافل کړي او که قران پرې غالب ؤ نو زموږ په نزد د دې کس خېټه له شعر څخه نه ده ډکه » په يو بل حديث شريف کي چي ابي بن کعب رضی الله عنه له رسول عليه السلام څخه روايت کړی ويل شوي چي :« ځيني شعرونه د حکمت ټوټې دي » .

کله چي مسلمانانو له مکې معظمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ ، مشرکانو د مؤمنانو په وړاندې دو سله وال ډګر ترڅنګ د رواني (نفسياتي ) جګړې محاذ هم ګرم ساته . په اشعارو کي يې اسلام او مسلمانانو ته بد رد نسبتونه کول ، د خپل جهالت او جګړه مارو مشرانو ستاينې يې کولې . نو نبي ﷺ هم خپل ملګري (عبد الله بن رواحه ، کعب بن مالک او حسان بن ثابت رضی الله عنهم ) د مشرکانو هجوې ته راوبلل ، په ځانګړې توګه کله چي حسان بن ثابت رضي الله عنه د شعر په ژبه د اسلام پر د ښمنانو ګوزارونه پيل کړل ، نبي کريم ﷺ ورته وويل :« ترڅو چي ته !(حسانه ) د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ ننګه کوې جبرائيل عليه السلام ستا ملاتړ کوي » . او بيا يې وويل چي :« حسان د دوی د اسي غندنه وکړه چي د مسلمانانو او خپل زړه يې پرې يخ کړ » . حسان بن ثابت ته الله تعالي ۱۲۰ کاله عمرورکړی ؤ ، په شپيته کلنۍ کي په اسلام مشرف شو او د خپل عمر وروستي شپيته کلونه يې اسلام ته په خدمت کي تېر کړل . شعرونه يې پر کفارو ترغشو بدلګيدل ، نو موړي ته د رسول عليه السلام د شاعر و يار په برخه شو ، حسان فخر کاوه چي په خپلو شعرونو سره د اسلام مدحه او د کفارو ذم بيانوي . د غه

رازحضرت علي کرم الله وجهه ، قعقاع بن عمرو ، عمروبن معدي کرب او.....رضی الله عنهم هم اشعارویلي ، حتی دعمر رضي الله عنه په اړه ویل کیږي چي په یو مجلس کي یې داشعرووایه چي:

وماحملت من ناقت فوق رحلها
ابرواوفي دمت من محمد(ص)

لکه څنګه چي جوته ده پرافغانستان صلیبي امپریالیستي یرغل یوازي نظامي نه ، بلکي فکري ، عقیدوي ، نفسیاتي ، فرهنګي اواقتصادي تجاوزدی. که په پوځي وسایلو یې افغانستان او افغان ولس دجسماني ، فزیکي او مالي زیاتوزیانونو سره مخ کړ، په فکري اوفرهنګي ډګرکي یې بیایو شمېرخبرونکي ، مؤرخین ، لیکوال ، ادیبان، ژورنالیستان او شاعران ګومارلي چي واقعیتونه برعکس منعکس کړي ، تاریخ مسخه اوارزښتونه تحریف کړي. همداکسان ادب اوفرهنګ ته دخدمت په نوم په اصل کي دغرب دکلتوري او فکري یرغل ملاتړي اودکرایې پوځیان دي ، دوي په خپلو لیکنو ، راپورونو اوشعرونوکي دافغان ملت ددین اووطن ربښتوني مدافعین اواتلان ، خاینان اوترهګرګڼي ، خوواقعي خاینان اوغلامان بیاملي اتلان اووطندوستان نوموي. دوی په ډیري بې انصافۍ سره هڅه کوي چي دافغان باشهامته ولس څخه دمیړاني ، عفت ، خپلواکۍ ، صداقت ، دفاع اوحیاانرژي وتروړي اوپه بدل کي یې بې حیایې ، غلامي ، بداخلاقي ، ټګي اوبرګي ورته وړاندي کړي.

له همدي ډلي یو شمېریې چي ځانونه کره کتونکي ؟ نوموي ، پایڅې پورته کړي حماسه له ادبیاتو څخه باسي ، یابیخي انکارترې کوي. فاضل لیکوال اوشاعرښاغلي عبدالستارسعیدصاحب دکتاب په سریزه کي همداموضوع ښه څېړلې چي دویلوڅه یې نه دي پکي پرې ایښي ، خوداچي دشعراوشعرا راوله حماسي څخه دانکارخبره نن سبادکره کتونکو؟ ترمنځ ډیره ګرمه ده نو (ددې کرښولیکوال ) په همدې اړه خپل نظراومشاهده هم درسره شریکه وي . ځیني ښاغلي کره کتونکي بې له کوم دلیل څخه حماسي اشعار دشعارپه رنګ رنګوي ، مثلاکه په کوم شعرکي داتلانوزرین یادونه ، دمجاهدتکبیرونه اویا ددښمن نیرنګونه ، وحشتونه ، مات سرونه اوغابښونه انځور شوي وو ، نو دشعارپه نوم یې یادوي . خوهغوی چي دهنرپه نوم په خپلوشعرونوکي سرې شونډي ، توري زلفي اوحتی مستوراندامونه ځلوي ، له دیني مقرراتو او اخلاقي پولو څخه څرګند بغاوت کوي ستایې ، په ویاړیې غونډې جوړوي اونوریې هم تشویقوي چي په اصطلاح توروا او زنګ وهلوزړونوته مینه ، خوښي اوعاطفه ډالۍ کړي !!.

په تأسف سره ،چي پرمطرح چيپانو سربيره تکنوکراتانو په شعوري اوښي اړخو بيا په شعوري اوغيرشعوري توګه په دې وروستيو کي زموږ د اسلامي او ملي جهادي ادب ځيني ته متې بډ وهلي دي.ځيني دجهادي پير مشهور قلموال اوس دخپلو مخکنيو جهادي ليکنو او پنځونو څخه بېزاري اعلانوي او ځوان کهول ته دمعياري ! ! هنر د پنځولو او د متمدنو ملتونو دهنري تخليقونو سره دسيالۍ ! ! په نوم دخپلو ملي او ولسي حماسود هيرولو او حتی غندلو تلقين ورکوي.

په ځانګړې توګه په تېره لسيزه کي دپخواني او اوسني جهادي بهير، څېرو او ظروفو دغندني په موخه دکره کتني ترچترلاندي فوق العاده غوندې جوړې شوې او دګډونوالو په ژبه يې دتشدد او ورانۍ توکي : ( ټوپک ،مجاهد ،جهاد ،شهادت ،خپلواکي ،دازادۍ او ملي نواميسو څخه ددفاع جګړې ،داتلانو ستايني ،دښکېلاک ګرو ماتي او غندني )- چي په حقيقت کي زموږ ملي او جهادي ټرمينالوژي ده - په کي وغندل شول ، او په راتلونکي کي يې په خپلو ليکنو او پنځونو کي دخپلي دغي ټرمينالوژۍ چي د ملت بقا او فلاح مو پکي نغښتې ده دهېرولو او غورځولو ټېرونه ووهل.ښايي ددوی دهڅو نتيجه به وي چي اوس داسي څه دشعر په نوم وينو چي نه پيغام او نه هم ښکلا لري ،شاعريوازي دخپلي معشوقې دنس ونفس کج وميچ او دخپلو هغو خواهشات بيان کړي وي - چي ذکر کول يې دلته مناسب نه بولو - ،مګر دې ډول شعرونو ته بيا کره کتونکي دځانګړې لاري او نوښت نوم ورکوي

دځينو ښاغلو په شعرونو کي فحاشۍ او غلامۍ ته دهڅوني او لادينيت ځلوني پرته نور هيڅ هم نه وي، خود دې سره سره دداسي شاعرانو شمېر هم لږ نه دی چي خلګ حقې لاري ته سوقوي ،داسلامي ارزښتونو ،ملي نواميسو او منافعو ساتني ته ځوانان رانتګوي ،دجهاد ، شهادت ،تعليم او ښو اخلاقو ښېګڼې بيانوي ، او داسلام او مسلمانانو د قسم خوړلو دښمنانو کرغيړني څېرې بربنډوي. دشاعررسالت او مسؤليت دی چي په خپله ملکوتي ژبه او خدای ورکړي استعداد داسلام ،هيواد ،تاريخ او ارزښتونو څخه دفاع وکړي ،نه داچي خلګ بې لارې او دښکېلاک چو پړته سوق کړي .

خوشحال خټک د غرب ځيليو کره کتونکو او څېړونکو برعکس دننګيالي و اصلي کړچار- په عامه اصطلاح ياژوند دغيرت ، يامرګ دشهادت - ،دغليم سربدالي ،اضطراب ،دټوپک ښکلا او دتوري شرنګار ابسيې او پرې وياړي چي دښمن يې له ډاره په خوب کي لړزيږي او له کټه پريوزي.

پــــه جهـــان د ننګيـــالي دي دادوه کـــاره
يابــه وخـوري ککـرۍ يابــه کــامران شــي

لاتراوســـه يـــې مـــاغزه پـــه قرارنـــه دي
چـاچي ماســره وهلــی ســرپه ســنګ دی

دګينډ يو پـــه ځيګرکـــي يـــې ګـــولۍ دي
کـــه ليـــدلی چازمادښـــکارتفنګ دی

لاپـه خـوب کـي پـه لـړزه پريـوزي لـه کټـه
چـــي دچاترغوږزمــــادتوري شـــرنګ دی

دسياست اوادب اتلان ! !په ناستواوولاړوکي ځوانانوته اعلانونه کوي چي ټوپک وغورځوئ ،قلم راواخلئ !،تيروځلورولسيزوکي ټوپک تباه کړونورهمداوژونکې الـه وسوځوئ !.هو ! داسمه ده چي ټوپک دانسان ژوندداخلي خوورسره داهم ثابتـه ده چي دظالم ،قاتـل اوغاصب څخـه دځان ،مـال ،نـاموس اوخـاوري حفاظت ،ديرغلګروشـړل اوخپلواکي ترلاسه کول هم ترډيره حده دټوپک په وسيله ترسره کيـږي.دتېرپـه څېرکـه نـن هم يرغلګروپه ټوپک (وسله )زموږپه لسهاووزره هيوادوال شهيدان کړي دي ، نوموږهم دټوپک پـه زوريرغلګرله خپلي خاوري شړلي ،وژلي اوپه چيغوکړي دي.که څوک دټوپک په وسيله دچاپرحريم تيری کوي نودابياهم ټوپک دی چي همدامتجاوزپرې شـړل کيـږي اوخپل ناموس پرې خوندي کيـږي.لکه څنګه چي ټوپـک اواسـتعمال يې مثبت اومنفي اړخونه لري همداشان قلم هم دهمدې قاعدې څخه وتلی نه دی ،ځکه که پـه ټوپـک مـادي شتنمۍ تالاترغه کيږي اوپه جسماني توګه انسـان پـرې ځوريداشي ،نوپـه قلم بيامعنوي ارزښـتونه تـروړل کيـږي ،دبشـريت زړه اوروح پـرې ژوبليداشـي ،دسـاري پـه ډول کـه بش،ټوني بلېـر اواوبامـا پـه سلهاووزره مسـلمانا ن پـه ټوپک(وسـله ) لـه منځـه يـووړل ،نوسلمان رشدي بيادقلم پـه څوکـه پـه مليونونوانسـانان زخمـي کـړل.اوس بـه نوڅومره احمقانه پريکړه وي که څوک دقلم غورځولوناري پورته کړي اوپرهرقلم لرونکي دظالم نوم کښېږدي ،کټ مټ دټوپک پـه هکله هم همدغسي ده. جوته ده چي نه يوازي ټوپک بلکي قلم هم که له خپل اصلي مسيره واوړي تباهي اوهلاکت دی ،خوکه پرمثبته لاروخوځول شي نوبيادنيااواخرت ښېرازي ،سوکالي اوکاميابي ده.



دافسوس ورډاچي دټوپک غندلو شعارپه داسي حال کي ډيرتکراريږي چي افغان يرغمل شوی ولس تربل هروخت وسله والي مبارزې ته نسبتاډيرضرورت لري ،ځکه ترسل زره ډيروحشي نيواکګرعسکرله ټوپکه نيولې تربې پلوټه الوتکواو په کيمياوي اوبيالوژيکي وسلوسمبال زموږپه ښارونواوکليوکي ګرځي راګرځي ،ښځي اوماشومان موپرې وژني اوکلي اوکورونه موپرې نړوي ،خوموږته همدابناغلي د وحشي يرغلګردښمن په وړاندي د ټوپک غورځولوتلقين راکوي. اديبان ،شاعران اوليکوال که خپله سنګرته نه شي تلای نوديرغلګرومظالم خوهرومروبايددژبې اوقلم په وسيله وغندي اودمجاهدينوميړاني اودجهادفضايل اووسايل وستايي اووځلوي ،ځکه همداجهاددی چي دتاريخ په اوږدوکي يې دشرق اوغرب له يوځي ،عقيدوي ،فکري اوفرهنګي غوبل څخه ازادکړي يواوپه برکت مويې خپل هويت ،تاريخ اوخاوره ساتلي ده.تاريخي اومځکني واقعيتونه ښيي چي ښکېلاک دمنطق په ژبه نه پوهيږي ،په تيره ديوغريب اومحکوم ملت په ناروخوغوږهم نه ګروي .نودوحشي اوجاهلواستعمارګروڅخه دخلاصون ترټولواغيزمنه وسله اووسيله دالله تعالی په لارکي وسله واله مبارزه ده ،نه دعدم تشددمفکوره !!،چي پيروانويې دازادۍ ترلاسه کولوپه خيال پلونوپيړۍ داستعمارپه غيږکي تيره کړه اواوس بيادادي دخپل ملت پرضد دنوي وحشي ښکېلاک په غيږه کي لوبيږي ،پياوړتيااوپايښت ته يې دملت پالني ترچترلاندي لاره هواره وي. هغه مهذب اوبشردوست !! ښکېلاک چي دلراوبردادب ځلانده ستوری علامه رشاد(رح)يې له اصلي څېرې پرده پورته کوي اودسترګوليدلی حال راسره شريکوي:

ولــــي دابشردوســـــتان شـــــفاخانې
جـــوړوي لـــه روغتونـــو ،مرده خـــانې
نـــړوي برښنـــــاکوټونه داروڼ انـــــدي
کينـــدي مخـــي دربڼاووتـــه دوی کنـــدي
زموږښـــارونه يـــې پرمـــوږکړل دوزخونـــه
ســـرې لمبـــې ،خـــړې لـــوخړې ،توردودونـــه
داعجبــــــه بشــــري بــــــرادري ده
پـــه رښـــتياداځنګل ډيموکراســـي ده
دزاړه اســـتعماردغه نـــوی رنـــګ دی
ګـــورئ داديوشـــتم قـــرن فرنـــګ دی

داسي بريښي لکه دوی ( کره کتونکي !!)چي د اسلامي او ملي تاريخ څه چي دادبياتو د هغه څخه هم ناخبره پاته شوي وي.نه پوهيږو چي همدا ښاغلي به د خپل ادب د ترټولو معتمد کتاب (پټې خزانې )منځپانګې ته د شعراو که د شعارنوم ورکوي، ځکه په پټه خزانه کي خوډېر هغه تاريخي - شهکار اشعاردي چي د دوی په اند د شعريت معيارنه شي پوره کولای، دبېلګې په توګه به دلته د «اميرکروړ»وياړنه وړاندي کړو چي رسا وايي:

زه يم زمری پردې نړۍ له ما اتل نشته
په هندو سندو پرتخاراو پر کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته
دزرنج سوبه مي دتوري په مخسور(۱)وکړه
په باداري مي لوړاوی دکورد سوروکړه
سترمي تربوركړه له ما اتل نشته
پرلوړوغرومي ويناد رومي نه په څنډوپه تالا
نړۍ زماده نوم مي بولي پرد ريځ ستايوال
په ورځو، شپو، مياشتو، کال له ما اتل نشته
زمادتوري ترشپول لاندي دی هرات وجروم (۲)
غرج (۳)وباميان وتخاربولي نوم زما په اودم (۴)
زه پيژندويم په روم له اما اتل نشته
په هندو سندو پرتخاراو پر کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته

شيخ کته نقل کا، له تاريخ سورنه چي اميرکروړ عادل اوضابط اود ښې ويناخاوندؤ، اميرکروړد اميرپولادزوی په **۱۳۹**کال هق دغورپه منديش کي اميرشواود جهان پهلوان يې باله، ويل کيږي چي اميرکروړ په يوازي تن له سلوجنګياليو سره جنګ کاوه ځکه يې نوکروړبولي، اميرکروړپه **۱۵۴**کال مړشوی دی.

(۱)سرخروی، کامياب، (۲)جروم، ګرمسير(۳)غرج، غرج وغرجستان هغه سيمه ده چي دشمال غوراوهرات څخه پيل ترامو پوري رسيږي.(۴)اودم، علاج، [پټه خزانه ۳۰مخ]

ايا موږکه له خپل ادب څخه حماسه وباسونو په لوي لاس به مود ميرځمنو پرژرنده اوبه ورسمي کړي نه وي او خپلي پښې به موپه خپل تبرګي وهلي نه وي ؟! ، ځکه



زموږ دادب په لرغوني ،کلاسيک او معاصر دورکي حماسي او پنځونکو يې د استقلال ،ناموس ،تاريخ ،ادب ،هويت او ازښتونو په ساتلو کي خورا مهم او اغېزمن رول لوبولی دی. له اميرکروړ څخه ترخوشحال ،پيرروښان ،ملالي ميوندۍ ،تورپيکۍ ،ناګار ،کاروان ،ګوهري او بيا ترشهيد مستسعد ،حنيفه زاهد ،مفتون ،سعيد او ذاکرپوري ټول زموږد حماسي – جهادي ادب هغه ځلانده ستوري دي چي ډيرولار ورکو يې په ځلا د وخت د استعمار او استبداد د وحشت په لوڅروکي سيده مسيرموندلی دی. نو څرګنده ده که څوک د «کره کتونکو ! !» پرلارځي په لوی لاس د دښمن شوم پلان پلی کوي او د خپل تاريخ زرين بابونه ترتورو خاورو لاندي کوي.

افغان ملت د تاريخ په اږدوکي د ښکېلاکګرو دوسله والو برېدونو او کلتوري يرغلونو او په کوردننه د سياسي اړودوړ له امله ، د دډيرو معنوي او مادي شتمنيو څخه بې برخي شوی دی او د فزيکي او صنعتي بنسټونو د بربادۍ ترڅنګ يې علمي او ادبي بنيادونه هم ويجاړ او ربښتني ملي اشخاص يې ځپل شوي دي .خو ستر څښتن تعالی د خپلي ځانګړې مهربانۍ له مخي په همدې ويجاړتيا توبي کي وخت په وخت ديرغلګرو او تاړاکګرو پرضد داسي مجاهدين ،علماء او قلموال راپيدا کړي چي په خپلو وينو ،اوښکو ،خولو او بې خوبيو يې دين ،خاوره ،هويت او تاريخ ساتلی ، په توره ،قلم او ژبه يې د ميرخمنو څپونه اره کړي او هوسونه يې ورخاوري کړي دي.

سليمان ماکو په تذکرة الاولياء او محمد هوتک په پټه خزانه کي د توري او قلم دډيرونو ميااليو سوانح خوندي کړي ،دغه راز په معاصرعصرکي علامه حبيبي دډيرونوم ورکيو عالمانو او قلموالو تذکرې ليکلي دي .په وروستيو لسيزوکي د کيفيت او کميت له مخي پام وړادبي تذکرې ليکل شوي دي .خو د تذکرې ليکني دودي سره سره په جهادي ادب کي د همدې ژانر پراخه تشه موجوده ده ، حال دا چي خام مواد زښت زيات دي .د شوروي اشغال او امريکا يې نيواک په دوروکي داسي ډيرځوانان راپيدا شول چي خورا په زړه پوري منثور او منظوم هنري –حماسي اثار يې وپنځول، خو يوزيات شمېر يې اوس د تېرشول هېرشول په دودله منځه تللي دي.نو همدې تشي ته په پام مو د معاصرحماسي ادب د تېرلس کلن دورد شاعرانو د تذکرې ليکني تابيا وکړ،په هيوادکي د ننه او بهرميشتو شاعرانو څخه مو د هغوی د ژوند حالات او دکلام نمونې وغوښتلې ،دنيکه مرغه چي ډيرو شاعرانو موغوښتني ته نه تنها لبيک ووايه بلکي په ملا تړيې



بدرگه کړو ،خو دیو محدود دشمېرشاعرانو دژوندلیک او اشعاروپه ترلاسه کولو کي تراوږده انتظارورو سته هم بریالي نه شولو ،البته له همدي ډلي دځینو هغوشعرونه راتـه رسیدلي دي او په همدې تذکره کي مولوستونکوته وړاندي کړي دي.

ستاسي په لاس کي کتاب دشاعرپرژوند اواند اجمالي بحث کوي ،خو پرفني اړخ یې دڅه ویلوحق لوستونکوته پریږدي.

لیکونکی دوروګلوی اوخواخوږۍ لـه مخـي لـه هغوورونوڅخه چـي یـوازي پـه شعرلیکلو اکتفاکوي هیله کوي چي دشعرترڅنګ دنثرپـه ارت میدان کي هم دقلم نوک وڅرخوي اولږترلږه دمعاصرادب مطالعې ته اوږه ورکړي.

که لوستونکي پـه همدې کتابګوټي کي داملایي اوانشایي نیمګړتیاووسره مـخ کیږي هیله من یم چي دبخښني ترڅنګ یې دراپه ګوته کولولورینه هم راڅخه ونه سپموي.

په پای کي له ټولوهغوورونوڅخه چي ددې کتـاب پـه اړه یې لارښووني اومشـورې راسره شریکي کړي او دموادوپه راټولوکي یې همکاري راسره کړې ډیره ډیره مننه کوم، پـه ځانګړې توګـه لـه درنوملګروهریـو:ګران وروررښاغلي قـاري عبدالستارسعیدصـاحب څخه چي لـه ډیروبوختیاووسره سره یې دسریزي لیکني غوښتنه پـه وریـن تنـدي ومنلـه اوستاسي په لاس کي کتـاب تـه یې خوراارزښتمنه اوڅېړنیزه سریزه ولیکلـه ،دقدرمن ورورمحتـرم ډاکټرعبدالواحـدریان صـاحب څخـه چـي دشـاعرانودایمیل ادرسـونواو ټلیفوني شمېروپه پیداکولوکي یې همکـاري راسـره کـړې ،اودحافظ محمد قاسم زهیب څخه چي ددې کتاب دموادوپه راټولولوکي یې منډې راسره وهلي دي دزړه لـه تلـه مننـه کوم.څښتن تعـالی دي دوی اونورټول یاران اودوستان ښاد ،بریالي اولـه بلاووپـه امان لري.امین !

په درناوي

نوراحمد سعید

ددعاءمحتاج



# رحمان بابا

[۱۰۴۲ـــــ ۱۱۲۸ هق]

## حـــمــد

ګـــوره هســـي کرد ګـــاردی رب زمـــا
چـــي صـــاحب د کـــل اختيـــاردی رب زمـــا

همګـــي بزرګـــواران چـــي څـــوک يـــې وايـــې
ترهمـــــه وو بزرګـــــواردی رب زمـــا

نـــه يـــې هـــيڅ حاجـــت پرچابانـــدی موقـــوف دی
نـــــه د هيچامنـــــت بـــــاردی رب زمـــا

لـــه نيســـتۍ يـــې د هســـتۍ صـــورت پيـــدا کړ
هســـــي رنـــــګ پروردګـــــادی رب زمـــا

هـــم صـــانع دی د جملـــــه وو مصـــنوعاتو
هـــم ســـامع د هرګفتـــاردی رب زمـــا

چـــي يـــې هيچـــري نـــه مثـــل نـــه مثـــال شـــته
د هغو عطرو عطـــــــاردی رب زمـــــا

هرتعميرچـــــــي ددنيـــــــااو دعقبی دی
د همـــــــه واړو معمـــــــاردی رب زمـــا

خوانــــــــده دنانویسوصــــــــــحیفودی
دانتــــــده دهراســـــــراردی رب زمـــــا

کــه ظــاهردی کــه بــاطن دی کــه مــابین دی
لــــه همـــــه ووخبـــــرداردی رب زمـــا

کــه پیداکــه پوشــیده دی کــه اوســط دی
پـــه همـــه ووقـــوف داردی رب زمـــا

شــریک نــه لــري پــه خپلــه بادشــاهي کــي
بـــــې شـــــریکه شــــهریاردی رب زمـــا

هســـي نــه چــي واحــدي یــې ده لــه عجــزه
پـــه واحدوجودبســـــیاردی رب زمـــا

حاجــت نــه لــري دهیچاویـــاری تـــه
لـــه هغوســـره چـــي یـــاردی رب زمـــا

څـه حاجـت دی چـي وبـل خواتـه یـې غـواړم
پـه خپـل کـورکي همکنـاردی رب زمـا

هـــیڅ تغیراوتبـــدیل نـــه لـــري رحمانـــه
تـــل ترتلـــه برقـــراردی رب زمـــا

------------------------------------------

[رفیع ،رحماني څم ۲۹مخ ، حنیف خلیل ،درحمان بابا کلیات ]

# خوشحال بابا

**[۱۰۲۲ـــــ ۱۱۰۰هق]**

## نعـــت شریـــف

دخدای(ج) عرفان مي وشو په عرفان دمحمد(ص)
پــاک دی محمــد پاک دی ســبحان دمحمــد
راشــه نظروکـړه پــه« طــه »پــه «یــس »بانــدي
خــدای دی صــفت کــړی پــه قــران دمحمــد
ډیرخلـــک پیـــدادی انبیاکـــه اولیـــاء دي
نشــته پــه خلقــت کــي بــل پــه شــان دمحمــد
درست خلګ که یوکړې انس اوجن دواړه جهانه
لاترواړوبـــه دی ګوښـــی ځـــان دمحمـــد
شــط درودنیــل کــه دموســی پــه حکــم وشــو
شـــق دقمروشـــوپه فرمـــان دمحمـــد
خــوان خوړدموســی مــن وســلوای یولــک وګـړي
انــس اوجــن مړیــږي تــل پــه خــوان دمحمــد
دوردنـــاقوس کـــه یوڅووختـــه ؤفـــاني
تـــل بـــه ترقیامتـــه وي اذان دمحمـــد
نــه دی قـیس ،رهبـان قـایم پـه خپـل دیـن اومـذهب
نــه زرقــیس ،رهبــان نــه یومسـلمان دمحمـد
یولــک څلرویشــت زره زیـات وکـم پیغمبـران دي
کـــل واړه مـــدام دي ثنـــاخوان دمحمـــد
پیــک (۱)یــې جبرئیــل ودرفــر جلــب نیــولی



پاس یې چې معراج وپه آسمان د محمد
خدای سره موسی په کوه طور کړلې خبري
دی دعرش له پاسه لامکان د محمد
څه دی دا آسمان ولاړېې ستني بې شاتیره
دی یو مختصر هلک ایوان (۲) د محمد
دا جهان هغه جهان که دواړه سره یو کړې
لا تر دانه لوی دی بل جهان د محمد
واړه جنتونه پکې څورنگ نعمتونه
څه دی درته وایم یو بوستان د محمد
څه دي دوزخونه پکې هومره عذابونه
جوړ دی ود ښنو ته یو زندان د محمد
ورځ چې د قیامت وي مرسلان به په هیبت وي
هور (۳) ته به جولان (۴) وي په میدان د محمد
خواست به نور څوک نه کا د خسته و عاصیانو
خواست به محمد کا خاندان د محمد
سل صلواة تل له ما په ال تقي نقي شه
سل درود ه تل په چار یاران د محمد
لاس دي لګولي ما خوشحال په دواړه کونه
غم اندوه مې نشته په دامان د محمد

---

پیک (۱)=پیغام ،استازی ،قاصد
هلک ایوان (۲)= کوچنی ایان ،کوچنی دفتر
هور (۳)حمله مجازا سربښندل
جولان (۴)ځغاسته منډې ترړي
[علامه حبیبي ،پښتانه شعراء۷۲مخ ،اودخوشحال کلیات]

# احمدالله وثیق

احمدالله وثیق پر۱۳۵۲ل،کال د زابل ولایت مرکز (کلات )اړوند د سره غره دخروټو په کلي کې دنامتو عالم مولوي نقیب الله صاحب په علمي اوجهادي کورنۍ کي زېږېدلی دی . ابتدايي ديني زده کړې يې له خپل پلاراو مشرورورشهید ملا مطیع الله وثیق څخه ترلاسه کړي اوبیايې تراتم ټولګي پوري لېسه لوستې ده ،خودګڼوهیوادوالو په څېرله نوموړي څخه هم لوړي زده کړي پاته شوي دي ، له څه ځنډوروسته يې ثانوي ديني زده کړې د کندهار په جهادي مدرسه کي پیل اوبیايې دهمدې لړۍ په تعقیب له مختلفو استادانو څخه دعلم فیض حاصل کړی چي په پایله کي يې دحدیثودوره دزابل ولایت په شاجوی ولسوالۍ کي د شیخ الحدیث عبیدالرحمن اخندزاده صاحب سره ترسره کړې او د فضیلت دستار يې پرسرکړی دی.

ښاغلی وثیق داسلامي امارت درادبره کیدوسره چي هماغه مهال تنکی ځوان ؤددغه کاروان ملګری شوی اوپه دوومهموجهادي ډګرونو(پوځي اوفرهنګي )کي يې ډېرخدمتونه ترسره کړی دي ،دطلوع افغان ورځپاڼې مسؤل مدیر،دبلخ ولایت داطلاعاتو اوکلتورریاست سرپرست ،دبلخ راډیو امیر اوپه کندهاراوکابل کي دشریعت ږغ راډیو دنطاق په توګه پاته شوی دی.

وثیق دامریکايي يرغل په وړاندي دوسله والي مبارزې ترڅنګ فرهنګي هڅي هم جاري اوګرځندۍ وساتلې چي په ترڅ کي يې داشغالګرو له لوري ونیول شواوڅه کم دوه کاله يې د بګرام او پلچرخي په کرغېړنو زندانونوکي دتوروتمبوشاته تېرکړل.

وثیق دپاک احساس ،ښه استعداد ،عالي ارمان اوښواخلاقوخاوندمینه ناک ځوان دی ،په دري ،عربي اوانګريزي ژبي رواني خبري کولای شي ،حماسی شاعر،خوږژبی ویانداوهڅاندژورنالیست دی ،دخواږه ږغ سره يې هیوادوال دشریعت ږغ راډیوله لاري اشناشوي دي ، په ځینومجلواوويبپاڼوکي يې راپورونه اوشعرونه خپارشوي دي ،نوموړی له ډېر وخت راهیسي شعرلیکي ګڼ شمېر ترانې ،نظمونه اوغزلونه يې لیکلي چي ځیني يې دهیوادنومیالیوترانه ویونکومترنم کړي هم دي.



# زه له باګرامه وهم چیغې

ربه دا ستا په پاکه مینه تر زندانه راغلو
چې زولنو ته د آزادو له جهانه راغلو

دلته د میني لیوني په لمبو ځان سوځوي
موږ عاشقان هم د لمبو تر امتحانه راغلو

موږ په دې تنګ په دې واړه جهان کې خوښ ځکه یو
د رب غفار د رحمتونو تر بارانه راغلو

زموږ د میوند لو حماسه د غلیم ملا ماتوي
موږ د غیرت له لوي ټبره د افغانه راغلو

موږ ته هر شړنګ د زولنو نوې جذبه راکوي
لا ولولې شي تاندي تیر له ځانه راغلو

زه له بګرامه وهم چیغې څوک یې اوري کنه ؟
له زندانونو مه ډاریږي تر ایمانه راغلو

د وخت نمروده بلوه، لمبې دي مه سېموه
موږ د خلیل په لار رهي تر ګلستانه راغلو

بګرامه ستا له وحشتونو دي بې باکه زلمي
موږ له سیلاب سره آشنا یو له توپانه راغلو

لته مو ژبه د سبحان له یاده تل لنده وي
موږ د غفلت له درانه خوبه تر یقظانه راغلو

زما وثیق ملګرو بلې لمبې مه سړوئ
یو وخت به موږ هم بریالي له دې میدانه راغلو

۲۵/۳/۲۰۰۸م
بګرام زندان ،بلاک: مین فلور ۱۱پنجره

# شهید وطن

چې د مینې ډیوې مړې شي پتنګان ځي سترړي
چې سیلۍ د خزان راشي بلبلان ځي سترړي

پیغلې هیلې شوې شهیدې ورته وزي لحدونه
د شهیدو کاروانونه په ارمان ځي سترړي

ټول وطن شهید شهید دی په هرکور کې دویر ساندې
وچې شونډې ګریوان څیري یتیمان ځي سترړي

یوه بله کربلا وه دلیلې په دښته جوړه
دوحشي یزید له لاسه امامان ځي سترړي

رانه ستوري د سهار چې توره شپه کړله په مخه
حریفان په ژړا سر دي رقیبان ځي سترړي

د فرنګ تر زړه وتلی تیز خنجر د ایوب خان دی
د میرویس له توري تښتي ګورګینان ځي سترړي

دې دوخت د ابرهه له هیلو جوړ شول انبارونه
جوړ لښکر د ابابیلو ترې پیلان ځي سترړي

لمبو سوي يې ځانګونه د قدرت په سر جګړه کې
هغو دنګو چنارونو نه مرغان ځي سترړي

د زلمیو د بریو وبهیر ته اې وثیقه
شول عاجزه حاکمان ترې عاقلان ځي سترړي



مالیدلي دی دتورې دګذار خوند
دوطن لار کې دټپ او دپرهار خوند

چې یاغي آسونه راشي میدان تود شي
څومره خوږوي داسونو شنهار خوند

چې غازي له جنګه ستړی ستومان راشي
عجیبه وي په رخساریې دغبار خوند

دبنګړو او پایزیبونو شرنګ به هیرکړي
که چا ولید زولنو کې درفتار خوند

شهادت که دي نصیب شو اې وثیقه
څه به ښه وي که دي وڅکل ددې لار خوند



## اې دزندان ملګرو!

دا زولنې درب له لوري امتحان ملګـــــــــرو ـ اې دزندان ملګرو
بې صبره نشئ او سئ ټینګ په خپل ایمان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

دا لار چې تاسو پرې ورځئ ،له کړاؤنو ډکه
دزمانې له حـــــوادثو ،تـــوپانونو ډکه

دنېست ترکلي رسي، دمرګ ترپولي رسي
سیني به سپرګرځو ، لوبې په سر به کـــوو
بې ارادې چې نشئ ، بې حوصلې چې نشئ
عزم متین به لرئ، په رب یقین به لـــرئ

غواړي دا لاره حوصله دغره په شان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

په تن به بلې سرې لمبې لکه بلال سړوو
داور داغونه به په سر لکه عمار قبلوو

دین تکلیفونه غواړي، ډیرزحمتونه غواړي
په سرو لمبو به خیژو ، به انګـــارو به خیژو
که په بدن زخمي شو ، که په لمبو ستي شو
درب رضا به غواړو ، خیر دعقبی به غواړو

درب رضا غواړي اورونو کې وریت ځان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

منم اختر دی زړونه ستاسي خنداګانې غواړي
وړو بچو سره نــــازونه اداګانې غـــــواړي

مور به مو وي انتظار ، تل به وي سترګې په لار
دسترګو تور به راشي ، دزړه ټکـــور به راشي
هـــا له دوستانو لري، له قـــــریبانو لري
دتـــورو شپو مســـــافر، دزولنو مســـافـــر

دخداي رضا په لاس راوړل نه دي اسان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

دشيطاني نړۍ دکفر طاغوتي ځواکونه
دا نړۍ خور دبشرضد دظلم زور پوځونه

ژر به ټوټه ټوټه شي، زور بې اوبه اوبه شي
دوخت موسی به راشي، په لاس امسا به راشي
دافرعوني ککړۍ، داطاغوتي ککړۍ
ټول به شي غرق په دریاب، شي ورته جوړ به عذاب

خداي به پرې راولي بادونه او توپان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

لا موپه غرو کې سنګرونه مرچلونه شته دي
لا دغیرت او شهامت مو ډير سرونه شته دي

خیر دی که ته يې محبوس، ګوره چې نشې مایوس
شته دي لا ډير شازلمي، له سره تیر شازلمي
دازادۍ مینان، د خپلو اکۍ مینان
کوي حملې په دښمن، دوخت په لوي اهریمن

د انقلاب لاروي ځي په مخ روان ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

ستا کار نامې به دتاریخ یو زرین باب جوړوي
ستا زولنې به په دښمن یو انقلاب جوړوي

دحماسو اتله، دزولنو اتله
ستامتین عزم تکل، له هوډه نه تېریدل
ستا اراده متينه، ستا فیصله ده سپینه
پاته به شي یادګار، دپرګنو افتخار

هیربه مو نکړي وثیق قدر په یو آن ملګرو ـ اې دزندان ملګرو

دبګرام په زندان کې دکوچني اختر دراتلو په مناسبت ولیکل شواوپه هماغه ورځ په ترنم وويل شو.
۱۳۸۷ه ش کال دمیزان ۲۰ نېټه ۱۱پنجره بلاک (مین فلور )

# احمداسلام جار

احمد اسلام جار د ۱۴۰۳هق په ذی الحجه میاشت کي د کندهار ولایت د معروف ولسوالۍ د سیفل زي په کلي کي د مرحوم مولوي علی نورصاحب په کورکي نړۍ ته سترګي پرانیستلي دي. ابتدايي تعلیم او د قران کریم حفظ يې د خپل والد صاحب څخه حاصل کړ، خود حفظ دستاربندي يې د بلوچستان ایالت په پلازمېنه کي په احیاءالعلوم شرعیه کي ترسره کړه. وروسته يې د دیني علوموزده کړي په بیلا بیلومدرسوکي کړي بالاخره د ۱۴۳۲هق په رجب المرجب کي يې په دارالعلوم شرعیه کي د شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم حقاني صاحب سره لویه (د حدیثو) دوره وکړه.

ښاغلی اسلام جار دلوړ استعداد، پاک احساس، ژورفکر، ښه اخلاص او ښایسته اخلاقو خاوند مینه ناک ځوان دی، په فارسي، اردو او انګریزي ژبو خبري کولای شي، د قران کریم حافظ، خطاط او شاعردی، پرممبرواعظ، په محراب کي امام، په مدرسه کي د دیني علوموا ستاد او په جامعه کي داعي او عالم دی. د طاغوت د معاصرو نیرنګونو او ننګونو په وړاندي د مسلمان ځوان کهول پرفکري پوهنه او روزنه ډیراصرار کوي، په ښوونیزو مرکزونو کي همدې مضمون ته نه پاملرنه يې ځوروي، نژدې په هره ناسته کي يې پر اهمیت روښا اچوي. اسلام جار د ډیري مودې راهیسي له شعرسره علاقه لري دیوولسو کالو راهیسي خپله هم شعرلیکي او د خوږ زړګي دردونه او احساسات په کي انځوروي، د لومړي شعریوه کړۍ يې ده:

خدایه ته خوندي کړې زموږ هغه استقلال
ګټلی چي په توره غزنوي دی که ابدال

دیوې مجموعې په اندازه اشعارلري، ځیني ترانې يې مترنمي شوي هم دي دايې هم د شعربېلګه:



# هلته ملاله

دلته پتنګ پرسرولمبوورد رومي
ښکلې بورا مو پرا زغوورد رومي

دلته فرهاد د معشوقو په مینه
کلنګ یې اخیستی پرلوی غروورد رومي

د پاني پت پرمیدان ګوره احمد
غزنوي هم پرمند رووردرومي

پرخویند و ګرانه ده شمله دورونو
ځکه ناهیده پرزخمووردرومي

هلته ملاله ترمیونده ولاړه
دلښکرمخ ته په تېووردرومي

تاندي زلمۍ مودي جذبې د زړونو
وینه مومسته پرړګووردرومي

له مستۍ غرونه په ککرووهم
ګید ړغلیم پرماتیدووردرومي

دا سلام جاردقلم ځوکه تېره
پرمستومستوحماسووردرومي

## شاهین

دیـــوه انقـــلاب پـــای دبـــل اغـــازکړم
پردښـــمن بانـــدي غـــوتېږ مســـتي دبـــازکړم

دسیند غوندي مست څپاند شم په غورځنګ کي
غردښـــمن کـــوچنی کـــوم اخیریـــږ تـــازکړم

کلـــه اوســـم پـــه هواروبېابـــانوکي
کلـــه غروبانـــدي شـــاهین رنګـــه پروازکـــړم

لکـــه لمردومـــره مـــي لـــوړکړي پرســـیالانو
حقدارنـــه یـــم لویـــه خدایـــه پرتانـــازکړم

دعقلونودقیـــاس پیـــالي شـــوي مـــاتي
چـــي حملـــي دپتنګانوپـــه انـــدازکړم

دغزادخونـــدخمارمي اوس بـــي تـــاب شـــو
ځکـــه جـــام دشـــهادت پســـي اوازکـــړم

پـــه لبیـــک دتکبیرچیغـــي تـــه حاضـــریم
پـــه لیموبانـــدي یـــي تـــل قـــدرنوازکړم

دادلـــوی الله کـــرم دی اســـلام جـــاره !
چـــي پـــه هرمیـــدان ورګډشـــم ځـــان ممتـــازکړم

# غوڅوو

تل سرونه غوڅوو موږ د مغرورو
داړي کلکي برېښوو د ځناورو

چا ته نه کوو زاری او ننواتي
مېړني يو خپلواکي ګټو په تورو

لا تر اوسه ډېر کمسن يې د غرب زويه
چې ميدان ګټې په لاپو او ډغرو

سلاح وار په اشاره باندي د زړه کړي
ستاسو زړونه دي کمزوري تر کوترو

توري غواړي ډيري کلکي زيږې متې
د همهغو بريتورو زړورو

چې د کور تر مرګ يې خوښ مرګ د سنګروي
چېرته په پروت وي پر ازغيو او ډبرو

مجاهد هغه قلم دی چې غازي يې
وي لوبغاړی د نثرونو او سندرو

اسلام جاره په پوښاک ساده ښکاريږو
خو اجل يو د هر د هر د جابرو



# اکرام الدین مفتون

اکرام الدین مفتون دمعلم سلطان میرزوی ،له نن څخه کابودوه یرش کاله وړاندي (۱۳۵۹ل ، )دننګرهارولایت دسپین غره دباندردغریزي درې په جمالخېلوکي زوکړی دی .لومړنۍ اومنځنۍ زده کړې يې کړې ،خودلوړوزده کړومخه یې دزیاتروهیوادوالوپه څېردزمان اومکان نامساعده شرایطوډب کړې ده .

ښاغلی مفتون پراسلام اوهیوادمین دښایسته اخلاقو ،پاک احساس ،لوړخیال اوښکلي څېرې څښتن ځوان دی ، دخپلواکۍ دلیلی هغه ریښتونی مجنون دی چي تل يې دوصال په ذکروفکرکي غرق– پرق وي .داعلاء کلمة الله اوخپلواکۍ ترلاسه کولوپرترټولواغیزمني لاري في سبیل الله جهادباورلري اوپه خپلوشعرونوکي یې خوږې اوترخې صحنې انځوروي :یخ ،ګرمي ،ګلان ،اغزي ، ،ګړنګ ،مورچل ،سیلۍ ،ژلۍ ،توپانونه اوبارانونه ، دغلیم منډي اوفریادونه ،دغازي جانان زخمونه ،زندانونه ،بریاوي اوشهادتونه .

مفتون دروان جهادي کاروان هغه سرسپارلی سپاهي دی چي که په ټوپک له خپلي خاوري دفاع کوي نودقلم په ملکوتي ژبه بیازنګ وهلي زړونه فتح کوي اوتیاره ذهنونه تنویروي. ددیارلسوکالوراهیسي دشعرله شاپیرۍ سره تارلري ،«مهاجرې اُوښکې» او«دار ته هر کلی » یې دوې چاپ شوي شعري ټولګې دي.



# سپېڅلی عزم

ړانده خو، نه يو په اغزو ګلونه، نه بدلوو
مونږ په نيمګړې خوشحالۍ غمونه، نه بدلوو
مونږه غافل نه يو مونږ زهر او شات ښه پېژنو
په خندا ګانو دا خواږه دردونه، نه بدلوو
مونږ به د تېر په څېر د هر يو ظالم مخه نيسو
خو په سر زورو نظريو فکرونه، نه بدلوو
زړونه له زړونو بدلوو خو په سپېڅلو زړونو
خو حقيقت کې له مداره زړونه، نه بدلوو
د قسما قسم سېلابونو غېږ کې ژوند تېر وو
لکه د خوړ کاڼي يو سپين رنګونه، نه بدلوو
نور به هم وڅورېږو نور به هم حالات بدل شي
خو دا جنګي او جهادي خويونه، نه بدلوو
مونږه د رب په مرسته هر وخت بدلوو وختونه
خو د وختونو سره خپل ځانونه، نه بدلوو
مجاهدوو، مجاهد يو او مجاهد به اوسو
شان او نشان ساتو اوچت نومونه، نه بدلوو
په غفلت نه، مونږ په غيرت او سادګۍ مين يو
په ټول جهان دا نازولي غرونه، نه بدلوو
سره او سپين پېژنو خو سپيني اوښکې هم پېژنو
په تشو کاڼو قيمتي لالونه، نه بدلوو
( مفتونه ) مونږ په ابدي مست ژوندانه مين يو
په دې نيمګړي ژوند، ژوندي مرګونه، نه بدلوو

## د خطر زنګ

شان شوکت کې د چینار په شانته دنګ یم
خوي خصلت کې د ګلاب د ګل په رنګ یم
شرنګ د تورو زولنو پر ما مین دی
زه مستي لرم د سپینو تورو شرنګ یم
په غلامو عادتونو عادت نه یم
غورځومه د غرور غرونه غورځنګ یم
زه د مرګ هیبتي سترګو کې ژوند وینم
هسې نه چې په دې خپل ژوند پورې تنګ یم
په سینه د خپلواکۍ لیلیٰ ته پروت یم
د باروتو په اور تور لکه لونګ یم
غیرتي یم ټنګ ټکور سره تضاد یم
د غفلت پردې شلوم د تندر کړنګ یم
د تاریخ اسمان کې ستوری د سبا یم
پېژندلی دې تمام جهان په ننګ یم
په یوه معنا پیغام د خوشحالۍ یم
خو په بله معنا بیا د خطر زنګ یم
په مغرورو بادشاهانو مې قلنګ دی
زه د سترې زمانې د اسې ملنګ یم
یکې راز د مینه ناکې زندګۍ دی
په دې هیله د تور جنګ سره په جنګ یم
د ( مفتون ) زړه د ترخو خاطرو کور یم
زه د ګران افغانستان په شانته ړنګ یم

# مسته تنده

تــوره پــه لاس ښځــه پــه رکــاب کــې غــوارو
تســـل د زړونـــو پـــه حـــراب کـــې غـــوارو
د ارادو ټیکـــــري کــــې بـــــده ښـــــکارې
مینـــه د وینـــو پـــه حجـــاب کـــې غـــوارو
د کــوثر خــوږ مضـمون د جنــګ مکتــب کــې
د پرهرونـــــو پـــــه کتــــاب کــــې غــــوارو
هغـــه مســـت جـــام د شـــهادت د زمـــزم
پـــه مســـته تنـــده د شـــباب کـــې غـــوارو
مـــونږ بـــې درده ژونـــدون نـــه خوښـــوو
شـــېبه شـــېبه ثـــواب ثـــواب کـــې غـــوارو
مـــزل پـــه څوکـــو د اغزیـــو کـــوو
د مـــه پـــه غیـــره د ګـــلاب کـــې غـــوارو
مـــونږ پـــه ژونـــد کـــې انقـــلاب نـــه غـــوارو
مـــونږ ټـــول ژونـــدون پـــه انقـــلاب کـــې غـــوارو
د هـــر مظلـــوم د هـــرې اوښـــکې بـــدل
د هـــر ظـــالم نـــه پـــه حســـاب کـــې غـــوارو
مـــونږ لـــه ممبـــره داســـې غـــږ کـــړی دی
جهـــان ســـر ټیټـــی پـــه محـــراب کـــې غـــوارو
ژونـــد تبـــاهي ګنـــو د ظلـــم ښـــار کـــې
نجـــات د رب نـــه پـــه دریـــاب کـــې غـــوارو
دوي ورتـــه پـــه جـــي او پـــه جنـــاب قایـــل دي
مـــونږ عـــزت تـــرې اجتنـــاب کـــې غـــوارو
جهـــاد ، جهـــاد او الجهـــاد ( مفتونـــه )
د ژوندانـــه پـــه هـــر یـــو بـــاب کـــې غـــوارو

# بدرالدين

مولوي بدرالدين دميرقلم الدين زوی پر۱۳۴۸ل، کال دخوست ولايت دلکڼو ولسوالۍ دبلي خيلو په کلي کي زيږيدلی دی. له وړکتوبه يې ديني تعليم پيل کړی ،لومړنۍ زده کړي يې په افغانستان کي اومنځنۍ هغه يې پاکستان کي په بيلابيلوښوونيزواوروزنيزومرکزونواودرسگاووکي ترلاسه کړي دي. داحاديثو(لويه )دوره يې دخيبرپښتونخواايالت په مشهورعلمي کانون (جامعه حقانيه اکوړه خټک ) کي ترسره کړې او دفضيلت اوفراغت وياړمن سندېې ترې ترلاسه کړی دی.

بدرالدين صاحب ترفراغت وروسته دخوست ولايت اړوندژوره کي فعال جهادي مرکز (سلمان فارسي رض غونډ ) کي ددينی علومودتدريس دنده پرمخ وړې ده ،دتدريس ترڅنګ يې په مختلفوجهادي محاذونوکي مسؤليتونه اوخدمتونه کړي دي. دمګړی دهيوادپه جنوب ختيځ زون کي ددعوت اوارشاد دمسؤل ، دخوست ولايت دنظامي کميسون دعضوي اودفرهنګي کميټې دغړي په حيث په خدمت بوخت دی. بدرالدين تکړه ديني عالم ،مدرس ،مبارز،اوذوري پوهي ځښتن شاعردی ، له خپلي وياړلي خاوري سره بې کچې مينه لري ، دخپلواکۍ اوسوکالۍ په ارمان يې اوښکي توی وي ،

پرشاعرۍ يې له دوولسيزوډيروخت وتلی دی ، دشعرپه مختلفو فورمونوکي يې دګران هيواداوافغان ملت وياړونه ،ويرني ، مبلمه پالنه ،شجاعت ،شهامت ،صداقت ،مينه اواخلاص ،دښکېلاکګروظلمونه ،يرغلونه اودخپل ډک زړګي ارمانونه اودردونه انځورکړی دي.

## دازادۍ الهام

خمیــــر دازادۍ راتـــــه الهـــــام کـــــړی دی
دلـوړ قـوت پـه مخکې مـي قیـام کـړی دی
هنداره دتـاریخ کـی اسلاف مـی بـریمن دي
ماضـي پانـه پـه پانـه نامزد پـه بت شـکن دي
دفتحې پـه مـانۍ کې لـه پشتـه هستوګن دي
دې صـف کـې مـی لبیـک دخپـل امـام کـړی دی

پـاړو یـم دحـق زه دوخـت ښـامار به دم شـي
خـونریزه انسـان کشـه وارونـه بـه یې کـم شي
ځنځیر دغلامۍ بـه یې غـاړه کې محکم شي
داعـــزم مـــې ښـــامارته لـــه ماښـــام کـــړی دی

ژونـدون دحریـت مـی جوړشـوی دی ضـمیر
دې کرښـه کـې دننـه څـوک نـه غـواړم امیـر
دنیـا مـې ځکـه بـولي سرکشـی لـه مسیر
پــــه مــــا یـــې ددهشـــت ځکـــه الـــزام کــــړی دی

بچــي دمکنـــاټن دشـــنو ســـترګو خاونـــد
دپلار تـاریخ دې ګـوري دمـاتي پـه اړونـد
میونـد کې بدرالدینـه پراتـه وه بند پـه بنـد
دهغـــه پـــلار زامنـــوپرې اقـــدام کـــړی دی
دلوړقـــوت پـــه مخکـــې مـــي قیـــام کـــړی دی

## دتسل ستوري

زمــــونږ دامیـــــدونو دتســـــل ســــتوري ځلیـــږي
اسمان کې یودوه نه دي سل په سل ستوري ځلیږي
پـــه غرونـــو ســـردروکې انګــــازې دي دتکبیـــر
پــه مـړاوو طبیعتــو کــې مکمــل ستوري ځلیـږي
پــه کلیوپــه قومونــو پــه بانـډو بانــدې ګرزیــږي
اوازدازادۍ کــړي پــل پــه پــل ســتوري ځلیــږي
فطـرت مـې پـه جـوش راشـي لـه الهامـه اوازه شـي
دسـپینې مـانۍ مخکـې پـه درشـل ستورۍ ځلیـږۍ
دزړه پـه غـوږ یـې واوره چـې منشـورمې عـالمګیردی
دانـه چـې بـه مـې صـرف پـه کابـل ستوري ځلیـږي
دنیــــا بــــه تماشــــه زه مــــادقول عمــــل وکــــړي
چـې کلـه پـه مرتـد (ابـن خطـل )سـتوري ځلیـږي
فضــــابه بدرالدینـــه ګلورینـــه هلتـــه بـــولې
چـې سـتا دقلـم پرخـې دغـزل سـتوري ځلیـږي

## خــــدایـــه !

خدایــه غــواړو کامیــابي پــه دې ظــالم
امدادونـــه اســـماني پـــه دې ظـــالم
چالـــه لاســـه چالـــه پـــوزې رانیـــولی
ځـــوک غوربونـــه تـــاووي پـــه دې ظـــالم
کولنګونـــــه دغازیانوپــــــه اوږو دي
داســـپین قصـــر ورانـــوي پـــه دې ظـــالم
دشـــهید بابابچیـــان پـــه ننـــداره وي
اتـــلان یـــي خنـــدوي پـــه دې ظـــالم
ساه بــه واخلــي بدرالــدین دخوشـالۍ بیـا
چـــې حســاب وي جهـــاني پـــه دې ظـــالم

## بسم الله سحر

شهید ملا بسم الله سحر جان محمد زوی ، پر ۱۳۵۲ل، کال دزابل ولایت په نوبهار ولسوالۍ کي دنیا ته راغلی دی .لومړنۍ زده کړي یې په زابل ولایت او ثانوي هغه یې د بلوچستان او خیبر پښتونخوا ایالتونو په بیلا بیلو مدرسو او مسجدو کي ترسره کړې ،د طالبانو د اسلامي تحریک د راوټوکید سره نوموړی د دې غورځنګ ملګری شو چي د جهادي مصروفیتونو له امله یې د زده کړو لړۍ تم شوه .سحر دیو غښتلي او سپین زړي قوماندان په توګه زیاتره وخت په بیلابیلو محاذونو کي د جګړې په لومړیو کرښو کي تېر اواه ،خو عجیبه دا چي هوري یې هم د شعر له ملکې سره اړیکي پالل او د خپل ډک زړګي حالونه او دردونه یې د شعر په لطیفه او شرینه ژبه انځورول.

سحر که په ټوپک د هیواد د غلیمانو پرضد مقابله کوله نو په قلم یې بیا خپل پیغام ترخلګو رساوه او د خپلو مورچلو الوموړال یې اوچت ساته .شهید سحر د غټ زړه ،کلک هوډ ،پاکي ارادې او روڼ فکر څښتن ؤ ، د خپلو مظلومو هیوادوالو سوکالۍ او روښانه راتلونکي ته یې ترهرڅه لومړیتوب ورکاوه.د اسلامي شعایرو او ملي منافعو حفاظت ته تردې حده ژمن ؤ چي د ساتني په لارکي یې د خپل سربښندلو ته تیارؤ،خدا بخښلی سحر په ۱۳۷۷ل،کال کي د تخار ولایت د خواجه غار په سیمه کي د شرا و فساد سره دیوې نښتي په پایله کي په شهادت ورسید.

روح دې ښاد ،یاد دې تل وي ،

ترشهادت وروسته یې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست له خوا د شعرونو مجموعه «سحر شعري غونډ» چاپ شوه .

### دنیران کوڅه

ذرې ذرې مې د جانان کوڅه کي وغورځوئ
ډیرمي بې قدره د خپل ځان کوڅه کي وغورځوئ
دزړه زخمو کي مي دردونه په لړزان خوشي کړئ
خویوګړی مې د درمان کوڅه کي وغورځوئ
دزړه پرهربانـدې مې نوري مالګي هم واچوئ

رقيبو ! بيامي دارمان کوځه کي وغورځوئ
لاس اوپښو ته مي راواچوئ کړۍ دظلم
هسي مظلوم مي دزندان کوڅه کي وغورځوئ
پت او عزت قاتلو ای دمحبت دښمنو !
پت اوابرومي دبهتان کوڅه کي وغورځوئ
که ديار ديد کړي لړوډيرخوهيڅ پروانه لري
سحرپه ژوندکي دنيران کوڅه کي وغورځوئ

## څه شوه

دين ته په تلوارچي به راتلله هغه څه شوه
چي زمادزړه ژړايي اوريدله هغه څه شوه
کوڅه کي چي به زمادا سويليوشوراوچت شو
له ميني به لمبه لمبه کيدله هغه څه شوه
سپوږمۍ دڅوارلسم چي شي دغره پرسراوچته
همداسي چي پربام به راختله هغه څه شوه
وفايي چي فطرت ؤدپتنګ دعشق وتاوته
چي تل به لکه شمعه سوځيدله هغه څه شوه
دالاړه ترې په کومه دلته اوس راغلی څوک دی
بيدياکي چي دزړه مي اوسيدله هغه څه شوه
له ويري چي سحره ! په کلوورته خاموش وم
غوسه يې چي ليموکي تاويدله هغه څه شوه

# بلینده بدرۍ

اغلې بلینده بدرۍ له آره د پکتیا ولایت د اریوب ځائیوده ،خوزوکړه یې پاکستان کې د مهاجرو په یو کمپ کې شوې ده او اوس په پېښور کې اوسیږي. ښوونځی یې ترپنځم ټولګي لوستی ،ددېیلابیلوعلوماو فنونوپر زده کړه سربېره یې دکائیناتود پنځونکي څښتن(ج) معجزکلام (قرآن کریم ) هم حفظ کړی دی.

بلینده بدرۍ دعالي ارمان سپېڅلي احساس ،عاطفې اوژورفکرڅښتنه اسلامپاله اوهیوادپاله میرمن ده،دکونډو ،ورارو ،بوروا ویتیمانو په ویر ساندي وایي ،په ټولـه کـي دولس پرمـاتم ژاړي اوپرسـوکالۍ یـې خوښـي څرګنـدوي ،داسـلامي شـعایرواوملي نوامیسو پرسپکاوي ډېره کړېږي اودعاملینو پرضد یې ځوانان راننګوي.هغوشاعرانوته چې په روانه ملي تراژیدۍ کې هم خال ورخسارستايې اودپیغلوقدمونه شماري دهوش سپارښتنه کوي اوکه بیاهم دمظلوموهیوادوالوپه کرېږواوغلبلوغوږنه ګروي نوپه غبرګو یې رندوي.

زه خو دې شعر نه لولم  
ماته یې مه رالیږه  
ځکه چې ته شعرو کې  
د خپل ګاونډ د خپل ټبر او مالت  
د تورسریو قدمونه شمارې  
په غبرګو ړوند شې مسلمانې پښتنې یادوې  
پرتا افسوس چې څومره سپکې دا درنې یادوې

داغلې بدرۍ خورد شعرلیکلو پیل نه دی څرګند ،له هغوشعرونوپرته چې خپلـه شاعري اونوروترې سوځولي ددوو ټولګوپه اندازه ( اشعار ) لري.

پس له سلامه ددې خط هر توری  
ښه زړه د خلاصه ښه په غور واوره  
ستا چې پرون په جرګه مونږ کړه وه مور راغلې  
هم مازیګر کې دې د پلار سره سپین ګیرې د چم  
شاید چې تا به زه وم پټه ښه لیدلې چرته  
یا به دې زما د لوی ښایست وې دبدبه تر غوږو

هو زه خبره يم چې تا په رومالونو ځينې
د بر شهيد بابا جنډه ډکه ده
پدې هم پويه يم سرزوری بې د چم ژنو کې
ټول بهادر دې بولي
خو ما تر اوسه ته ليدلی نه يې
او وړکتوب مو هم هجرت کې تير شو
خو زه ددې کلي د پيغلو پشان نه يم ګوره
او نه هم زه مې په ښکلا باندې مغروره يمه
دا خو منې چې هره پيغله حق د مهر لري
او دا هم واوره زه مې مهر چاته نه ښنمه
هم له ډولۍ بې مخکې مخکې غواړم
هغه نه زر نه دياقوتو زمرودو اميل
نه دولتونه ، نه هم تلل پسې لندنه پورې
نو که ما غواړې غم دمهروکړه
او هغه دا چې لاړشه
د پورې غره په يو تنګي کې کينه
پوره پينځه ها پيرنګيان ووژنه
او که دا لويه درته ښکاري وس دې نه رسيږي
نو دوباره دې مور او پلار په جرګه مه راليږه

## د بالا بلوک د يوې پيغلې جسد

زه او دوه وړوشکي ورونه
د ډيوې تتې رڼا ته
يو کتاب ته سره ناست وو
ما به توری ورته تير کړ
دوی به دواړو سره غبرګ کړ
ها نو عمره وړه خور مې
په زانګو کې په غومبر وه
مور مې ستن په لاس په خوا کې

د ټيکري په پيڅه بوخته
دا ټيکری مې د واده و
مونږ د کلي خوارې جونه
د وريښمنو سالو چرته
هلته ها خوا ديواله ته
پلار مې ناست راډيو په لاس کې
په راډيو کې خبرونه
جنګ، وژنې، او بمونه
دغه شپه هم لکه نورې
ښه بې شوره پور سکون وه
لا شيبې وتلې نه وې
لا خبرونه تمام نه وو
لا ګل پاتې د ټيکري و
لا وړوشکې اوده نه وه
هم زما د وړو ورونو
د کتاب لومړنۍ کرښه
چې غړمبا شوه د چورلکو
پلار مې زر راډيو کرار کړه
زه هم چوپه ورونه هم چوپ
پلار مې ووې دا وحشيان نن
څومره ټيټ جازونه بيايي
داسې نه وايي چې شپه ده
ماشومان به ټول راويښ شي
خو يو دم داسې بريښنا شوه
په کړکيو رادننه
چې پدې نيمه تياره
کوټه کې واړه سره ورک شوو
چت راپريوت هر ديوال هم
له هر لوري رانسکور شو
خدآيزده ها وړه خورکه
ها نو عمره د څو مياشتو
چې له کوم ديوال شوه لاندې
نه پوهيږم پلار مې څه شو
او ها خواره مور مې څه شوه
پويه نه شوم چې مې ښکلي
ها وړوکي ورونه څه شول
خو زه پويه په خپل ځان وم
چې يم لاندې له ديواله
د بدن هر يو هډوکی مې
جدا جدا ماتيږي
زه په درد نه پوهيدمه
ځکه ټوله خچه پچه
نو څه درد به مې احساس وای
زه جسد د ديوال لاندې
د يوې پيغلې مسلمانې
پښتنې د بلا بوک يم
مونږ بزګر وو غريبان وو
مونږ د چا قاتلان نه وو
نه مو چا نه څه غلا کړې
نه دعوه مو د څه برخې
دا جونګړه ، دا څو کسه
د ډيوې تتې رڼا کې
که نهر که به ماړه وو
سره يو بل ته خوشال وو
اوس نو دې وطن کې داسې
څوک ځوان شته که ميراتي ده
چې زمونږه له قاتله
تشه دا پوښتنه وکړي
چه زمونږه ګناه څه وه؟

# پیر محمد کاروان

پیر محمد کاروان دنورمحمدزوی ،د خوست ولایت د تنیو ولسوالۍ د نریزي په کلي کې دنیاته راغلی دی. لومړنۍ دیني او عصري زده کړي اودفارسي ژبې دوتلې شاعرمنظوم ا ثار(گلستان اوبوستان )یې په خپل کلي کې ویلي دي اووروسته یې دخوست ولایت میخانیکي لیسه تردولسم ټولگي لوستلې ده.

ښاغلی کاروان له لیسې څخه ترفراغت وروسته دکندهارپه نساجي فابریکه کي په دنده وگومارل شو،خودڅورله کودتاه سره یې دنده پرې ښوده په خپل کلي یې په مزدورۍ پراوښ دلرگیو راوړل پیل کړل تردې چې ستونزواړکړ ایران ته مزدورۍ پسې مسافرشي ،ایران کې به یې دمزدورۍ په څه پیسو کتابونه اخیستل اوکه دورځې به یې هرڅومره سخت کارکاوه خودشپې یې مطالعه نه پرېښوده ،په همدې پردیسۍ کې یې ارزښتمن اثار ولوستل څکه نویې نوموړی دخپلوادبي زده کړومهم پیرگڼي.

څه وخت وروسته پېښورته راغی ،د وفاورځپاڼې سره یې همکاري پیل کړه ،دلیکوالواوشاعرانوسره یې راشه درشه پیداشوه ،داستادمحمداصف صمیم ،محمدصدیق پسرلي ،نورالحبیب نثاراو.....سره په گډه یې افغان ادبي بهیرتاسیس کړچې وروسته په یوفعال ادبي مرکزتبدیل شو.

ښاغلي کاروان په دولس کلنۍ کې لومړی شعرلیکلی دی ،آن په هغه ماشومتوب کې یې دافسانواوفولکلورسره ډیره جوړه وه ،په وینایې چې دسعدي دکتابونوپه تیره دگلستان لوستلویې دشعروشاعرۍ سره نوره هم مینه اوتلوسه زیاته کړه.

کاروان صاحب دافغاني غرور،پاک ملي احساس اوژوري پوهې څښتن ،بااستعداده متواضع شخصیت دی ،غښتلی کیسه لیکوال ،ډرامه لیکوال اوشاعردی اوداوسمهالي پښتوشعردسرلاروپه کتارکې هغه ټولمنلی شاعردی چې پریوه وخت یې دقافیه وال اوازادشعربریالۍ پنځونې کړې دي.

له ماښامه ترماښامه ،

چنارخبري کوي



اودشاپیری ورغوي يې چاپ شوي شعري مجموعې دي.

له نرګسه ترنرګسه

اوغره ته روان سړی يې دلنډوکيسوچاپ شوي ټولګي دي.

دکاروان ټول منظوم اومنثورچاپ شوي اثار دلوستونکوله خوراډپراخ هرکلي سره مخ شوي اوڅوڅوواره چاپ شوي دي.داهم دښاغلي کاروان دپنځونوبېلګې:

## ګل اوبني ادم

دګل خوراک ،خاوري ،ايرې اوسره

لړي رنې اوډيري خړي اوبه

بياهم سپېڅلی دی ،ښايسته دی ،له وږمونه ډک دی

سترګي اوزړونه پرې خوارږه شي له رنګونه ډک دی

خو،بنيادم چي پرښتوورته تندی ابښی دی

ګل ته ورګوري اوتراوښکونه رنې اوبه څښي

له تکوسرومڼونه خرپ وباسي

حيران په دې يم ،دابدرنګ ولي شي !

هغــه افغــان ګــل يــې چــي ګلچــين بــه مســلمان کــړې

هندبــه مســلمان کانــدي اوچــين بــه مســلمان کــړې

ســــتاخوږې خبــــري کرامــــات لــــري شــــکري

جــاردي شــمه ښــکلي نــازنين بــه مســلمان کــړې

تــوري برګــي ســترګي دي دســتوروډکي شــپې دي

نازدي که لړوينښ شي توراو سپين به مسلمان کړي
زرکي او کوتري خودي هسي هم ملګري
بازبه دي غلام شي او شاهين به مسلمان کړي
تورکمرد تور کفربه طور غوندي رڼا کړي
شنه لمبه شه وچ که وي راشين به مسلمان کړي
ښه له درده وژاړه چي اوښکي دي الماس شي
تاو ترسپينو غاړولونګين به مسلمان کړي
ګوري به کاروان دمريدانو به دي مل شي
ډيرله شعرمنکر، ملحد، بې دين به مسلمان کړي

۱۹۸\۱۲\۷مه پيښور

## کرزي ته

دا ماشوم چې تا په غېږه کې اخيستی
دا ماشوم چې نه درګوري نه موسکی دی
په غوټۍ زړه کې يې ښخ د جنګ اغزی دی
دا ماشوم چې د باروتو په سېلۍ يې
ښايستو کې ګلابي غومبوري وچ دي
د ماشوم چې د جګړې تر خو لاسو يې
پر تندي شيندلي مرچ دي
دا ماشوم چې يوه پښه يې
امريکې په غاښورې اړي غوڅه
جنګ ځپلی دی د امن په ارمان دی
دا ماشوم تصوير د درست افغانستان دی

## ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې
پرسردې تاو وه هراتۍ توره لونګۍ ، د کندهار زلمیه
په کې غوټچه غوټچه ټومبلې تور لشي اوزرین رنګي غنم
لشې لشې بانه دې نبغ وو ، شمله دارزلیمه
اسماني آس دې تر پښو لاندې مستانه روان و
په شرنګا شرنګ لکه موزونه ترانه روان و
پر مخ روان لکه روانه زما نه روان و
قدم قدم یې ود سردا ستا دانو استاد
ته وا چې نال نال یې چا جوړو له تیشې د فرهاد
ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې
دغه دزیړې زرغونې تر پلو شو لاندې شنه غرونه وینې!
زرین وزري طاووسان دې استقبال ته ولاړ
دغه د سر ه شفق په شال پټې رڼې ویالې روانې ګورې!
درته وریښمینې څڼې بیا دي ښا پیریو خورې
ته به راځې ته مې په خوب لیدلې
ولې به نه راځې ، نو خود به راځې
چې یې ستا نوم زموږ پرټنډوټک وهلی و په شلو میخو
تر تو رولاندې مو په پرې سرونو ستا په خاطر
شهیدانه رقصونه ډیر کړي دي
د خپلو وینو پر څادرمو ستا په نوم ، نفلو نه ډیرکړي دي
زموږ د پیغلو پیغلو خویندو د سینو په غو ځولو باندې
د ظالمانو قصابانو چړې ډیرې پڅې
راځه راځه دزړو نوبت کې مو نینې دي د پولادو پخې
بوړن یې واخلې تېرې داړې شي د مرګ ورته له وېرې پڅې

ته به راځې، ته مې په خوب ليدلې
تر تا قربان، دصوفيانه نظام منصور سرداره
للمي غاټول ته پر خې پرخې، پسته ور، بارانه
رنځور وزړونو ته اناره دانګور سرادره
ته به راځې ، ته مې په خوب ليدلې
په خامو پيوها لمدې چړې ړندې دې ړندې
هغه په تاندو وينو سرې تورې نن زنګ خوړلې
خبربه نه يې چې مغرورې فرعونې ککرې
ددريابي قهر زرين غوندې نهنګ خوړلې
ته به راځې ، ته مې په خوب ليدلې
د سخې جان سپينو کو ترو درته لويه سلامې نيولې
تر تا جار يږې خو ايې ستا غوندې زلمې نيولې
او ښکو تا بيا د جوړو لو ستاو تاج ته د غمې نيولې
کر کې ځپلي يو د سختې مينې ډير تږي يو
يه تر الما سو ځليدونکيه او ځپانده روده
په غورځنګو نو شه په تور کمر کې لاره باسه
زمونږ د بخت پاچا راځه پښې دې مه وبا سه
ته به راځې ، ته مې په خوب ليدلې
پر سردې تاو ه هراتۍ توره لونګۍ، د کندهار رزلميه!
په کې غونچه غونچه ټومبلې تورلشې اوزرين رنګې غنم
لشې لشې بانه دې نيغ ووشمله دارزليمه
ته به راځې ، ته مې په خوب ليدلې
ته به راځې ، ته مې په خوب ليدلې

۱۹\۱۰\۱۹۸مه پيښور ناصرباغ نوې کمپ

--------------- ----------------

دشاپيرۍ ورغوی بيلابيل مخونه ،دکاروان شعري ټولګه

# چینار ټکور

چنار ټکور چې اصلي نوم یې عبد النافع دی د مرحوم محصل زوی ، پر ۱۳۶۳ ل ، کال یې په غزني ولایت کې د کوچې پرګنو په یوه مخوره کورنۍ کې نړۍ ته سترګې رڼې کړې دي .چینار ټکور ابتدایي او منځنۍ دیني زده کړې د افغانستان او پاکستان په مختلفو مدرسو کې ترسره کړې دي ، خو دژوند د مصروفیاتو له وجې یې د نهایي دیني زده کړو فرصت نه دی موندلی .

دښاغلي ټکور شعر ځانګړی رنګ او خوند لري ، نوموړی شډله کوچیانۍ مینه ستایي ، په خپلو دیني او ملي افتخاراتو ویاړ کوي ، او د شعر په ژبه جهادي یادونه هم راسپړي.

والله چې په ښکلا کې ورته هیڅ سپینه مانۍ ده
ولاړه مې د تور غره په لمنه کې کیږدۍ ده
دعا کوه ، دعاکوه ، د پیربابا ملنګه
نیولې رانه تندر د شینکي اسمان سپوږمۍ ده
زما په طالبي پګړۍ کې څومره ستر قوت ده
دنیا ورته حیرانه ده ، په تیښته تري نړۍ ده
له هسکه کوه قافه ښاپیرۍ ورته رادرومي
له څه تاثیره ډکه د شپونکي اشنا شپیلۍ ده

ښاغلی ټکور له ډیره وخته شعرونه لیکي ، اوس یې د شعر یوه ټولګه چاپ ته اماده کړې ده .

## له سلګیونه دي ځار شم

بیا مې څه ماشومې چیغې ترغوږو دي
بیا د چا په کور کې سور ماتم میلمه ده
بیا دوخت د قاتل لاس په وینو سره دي
بیا دژوند په زنګاوات مرمۍ وریږي

بیا په کوم معصوم زړګي شوې مرمۍ ښخې
اسویلي دي او آهونه پورته کیږي
بیا دوخت کائنات واړه په ژړا دي
اسمانونه ځمکې دواړه په ژړا دي
بیا سپیڅلي ارمانونه شهیدان دي
بیا له کلي په سلګیو کډې درومي
بیا له خوبه ډکې سترګې کړي مزلونه
کوږکونو ښکل کړل ستړي قدمونه
نیمه شپه ده په تمام عالم چوپتیا ده
دلته ویر ده دلته غم دلته ماتم ده
یو ماشوم په وړه ژبه مور ته وایي
اخ ادکې په ګولو غلبېل غلبېل شوم
ناوکۍ خور یې په چیغو چیغو راغله
دشهید ورورکي جسد ته ودرېدله
اخ دا کومو ظالمانو ولې ؟ولې ؟
چې ځیګر نه دې مرمۍ پورې ایستلې
دومره واورئ جهانیانو !دومره واورئ
په دې کلي کې دبورې مورکۍ ویر ده
د دې عصر فرعونیان به په کې غرق شي
په ګریوان کې یې داوښکو رودنېل ده
بیا دې سترګو نه مظلومې اوښکې درومي
اې زما کنډر کنډر ګرانه وطنه
اې ایمانه اې مسجده زما ژونده
له سلګیو نه دې ځار شم کندهاره !



وریـــږي مـــو پـــه کلـــي رحمتونـــه بارانونـــه
راوړي دې ســـــپرلي راتـــــه ګلونـــه بارانونـــــه

دخدای درحمت وریځو مو په سر دی سیوری کړی
پـــه دښـــــتو راوریـــــږي انوارونـــه بارانونـــــه

بیـا کـوم سـتړي شـپونکي د زړه لـه تلـه دعـا وکـړه
راځـــــاځي دکیږدیــــو پیځولونـــــه بارانونـــــه

تبریـک شـه اې مړژوانـدې دبیابـان دللمـې ګلـه
پـــوره دې شـــول نیمګـــړي ارمانونـــه بارانونـــه

ســـپرلی بـــه کلیوالـــو تـــه دامـــن زیـــری راوړي
ښـــکیلاک و تـــه بـــه راوړي تندرونـــه بارانونـــه

د دنګـو چینـارونو زخمـي هیلـي یـې ټکـور کـړې
لانـــــده کـــړل دښـــترو وربلونـــه بارانونـــــه

۲۱ حمل ۱۳۹۱ هـ ش



# حاجي محمد اواب

حاجي محمد اواب پر۱۳۲۴ل، کال دکندهار ولایت په مربوطاتو کي دمولوي رازمحمدصاحب په کورکي فاني نړۍ ته سترګي غړولي دي. ښاغلي اواب له کوچنیوالي دیني زده کړو ته مخه کړې ، په مختلفو مدارسو کي يې ديني علوم لوستي او په ۲۰۰۹ کال کې يې ديني زده کړې پای ته رسولي دي.

اواب صاحب دتعلیم او تعلم سره سره له ۱۳ کلونو راهیسې شعر لیکي ، تراوسه يې ګڼ اشعار لیکلي دي ، نوموړی په شعر کي عشقي او حماسي موضوعات دواړه پالي.

ماښام زلفې دې خورې پر سهار مخ
عجيبه ده يو ساعت کې شپه او ورځ
درست وجود مې په لړزه دی لکه زړه
د يوه ښکلي په هجرت کې شپه او ورځ
زما د خيال ارته نړۍ کې ستا د ياد
سيارې په حرکت کې شپه او ورځ

حاجي محمد اواب اوس دبلوچستان ايالت په چمن ښارګوټي کي اوسي ،نوموړی چي په همدې سيمه (چمن )کي دادبي هڅو سرلاری بلل کيږي ،د ملګرو په ملتيا يې دڅوکلونوراهيسي په چمن کي د ټکوراد بي ټولنې په نامه يوه ادبي ټولنه رامنځته کړې ده ، چي دمتفرقو فرهنګي هڅوسره په څنګ کي يې وخت په وخت مشاعرې او ادبي ناستي جوړي کړي دي.





داهم داواب دهنري تابلوګانوننددارتون :

## نعت شريف

د اخــــلاقــو پســرلي دي لکــه ګل خويونه راوړل
تا وبـــڼ د دې نړۍ تـــه څه ســـنبل خـــويونه راوړل

تـــرې زرينې وړانګـــې اوري،ستا هر کار د رڼا څـلې
تا په تور تاريـــکو کې ځـــل او بـــل خويـــونه راوړل

تا په زړه کې د ظلمونو ، سپينکی توغ د عدل جګ کړ
دا دي څومره ښه سپېڅلي او اتل خـــو يونـــه راوړل

تا لمبې د نفاق مړې کړې، د اخوت په باران بـانـدې
تا عجيب او په زړه پوري ، زړه تسل خـويـونه راوړل

ته امـن پېـــغمبر يې ، اې د درست جـهان رحـــمته !
تا د عـــلم، حـــلم، عفوِ ،څه مـــشل خويـــونه راوړل

ته د ستـــرو کـــمالاتو ، خـــزانه يې پـــاک رسـولـه !
مـا عـاجز اوّاب دي دلتـه ،ډېر اقـل خويـــونه راوړل

۲۰۱۰/۱۲/۱۸





# غـــــزل

لکه تسپـــې چې وي شـــکېدلي او لـه تاره وزي
داسې په ځغاسته دا بدرنګه زموږ لـه ښاره وزي

هر زورور چـــې پر مخ تللې وســله راوړي دلتـه
د هســـک پامیر سره ټکرکې بس لـــه کاره وزي

چې کلـــه ووینم لمر مخی زموږ د چم کوڅو کې
وایم له ځان سره چې لـــمر هم لـــــه مداره وزي

د یاره پر مخ چې خولې سپینې رغړي ته به وایې
چې ملـــغلرې پر هنداره ځـــي لــــه هــاره وزي

ستا په لیدو چې د خوښۍ طالب وزړه ته راشي
د غـــم ناټو نو بیـــا لـه دغـه کـنـدهــــاره وزي



اې د پت سمبولي ! د حيا چينې !
اې د ميوند د تکبير مستي چيغې !

اې په ننګ پسوللي د غيرت ټپې!
اې غازي ملالي پښتنې !

تا خو په سرو منګولو توغ اوچت کړ
تا خو د يار په وينو خال دی ايښی

تا خو مړژواندي پوځ ته سا ورکړه
او تا خو غزا لره ښکلا ورکړه

تا خو مستان په شرابي لنډۍ کړه
تا خو پر جوش کړه افغاني پوځونه

د جنګ خمار دي د غازيانو مات کړ
چي يې غرور د پرنګيانو مات کړ

ته خو فاتحه د ميوند سوې خوري !
هم دي ساړه کړله مردک ټټر کي

زړګی دي يخ کړ د دښمن په مړينه
ميوند دي ځوان کړلو په پېغله وينه

ملالي ! اوس د افغاني نجونو
په اوربدو يې د چا زړونه چوي

د شهادت کيسه د وير کيسه ده
د زنګاوات د ظلم دا سي شپه ده

په نيمه شپه کي مو انګړ ته خورې !
دا بلوا ګر او د وحشت بچوني

ټوپک په لاس کي بشر خوره راغلل
څومره بېشمېره لور د لوره راغلل

د کور په منځ کي مو سوې کريږي ګډي
ها دوه کلن د زړه ټوټې بچي مي

ما پر ماشوم، ماشوم مي ما ته ژړل
يو ځل يې ما بيا يې بابا ته ژړل

ما خوارکۍ او ما بې وسې ګوره !
کوکي مي وکړې د خدای پار دی مه کړئ

ماشوم بچی مي تر ځان لاندي پټ کړ
مګر ظالمو په ګولۍ مکوټ کړ

آه ! را شهيد يې کړ سړی په مخ کي
خونه مي کوړم سوله د وينو غوښو

د سر ماغزه يې د مرمۍ خورک سول
د دې قاتلو تري بوټونه ډک سول

سپين مړوندونه مو د ښکلي ناوي
لکه ګلاب د دا سي زوم تر زړه مو

سوله په وينو باندي سره ملالي!
يوه يوه ګولۍ وته ملالي!

آخر له ويري مي سوې اوښکي وچي
پر هر ټوټې ټوټې شهيد جسد خو

کړيکه مي نه وته تر خوله ملالي!
بس ګرځېده د اور لمبه ملالي!

# حنيفه زاهد

حنيفه زاهد پر ۱۳۳۴ل ،کال د زابل ولایت د شاه جوي ولسوالۍ د جعفرو د کلي د محمد عبد الله اخندزاده صاحب پ ه دینداره او متدینه کورنۍ کي زوکړې ده .لومړنۍ زده کړې يې له خپل پلار څخه ترلاسه کړي اود ديني علوموبيلابيل فنون لکه صرف،نحو ،فقه ،تفسيراواحاديث يې له خپل خاونداوخسرمشهورپه اخندزاده صاحب څخه زده کړي دي.اغلې زاهد په افغاني عنعنوي او اسلامي ټولنه کي هغه نيکمرغه ميرمن ده چي دکوراوکلي دکارونواومناسبتونوترڅنګ په ساعتونوساعتونوپه تعليم اوتعلم بوخته وي ،له خپلي مطالعې څخه علاوه ديوې پوهي ،مينه ناکي اومهرباني مورپه څېرروزمره شپږساعته کليوالي انجونوته په زده کړه ورکولوتيره وي .حنيفه زاهد د سپېڅلي احساس ،ويښ ضمير،ترحم اوعاطفې څښتنه ،عالمه اوښوونکې ميرمن ده ،له خپلي خاوري اوخپلواکۍ سره يې ډيره مينه لري ،لارويان يې ستايې اوپرې وياړي ،ځوانان په زغرده دښکېلاک پرضد بغاوت اوپاڅون ته رابولي ،استعمارګروته دافغان ولس سره دټکرتاريخي بوږنونکي صحنې اوپايلي ورپه زړه کوي اوپه حال کي ورته دماضي څخه دعبرت اخيستلوسپارښتني کوي.

ژر بـــه څيــري د نــرۍ ورې ښــامار کـــړي
د رښـــو تـــورو لاړونـــه لا ژونـــدي دي
چــي سـبک يـــي د کســات پکښـــي ښــودلی
هغـــه پـــانې کتابونـــه لا ژونـــدي دي
چـــي زاهـــد بانــدي کــړه ګــرزي لـــه نــازه
د مردانـــو تاريخونـــه لا ژونـــدي دي

زاهد دډيري مودې راهسي شعرليکي ،ډيرشعرونه يې پنځولي دي ،خوتراوسه يې کومه شعري ټولګه نه ده چاپ شوې.



## تر تا ځار ښکلې ځوانۍ شوې

پـه مسـکا مـي ګـل غـوټۍ شـوې تـه رانغلـې
ځـوانې هيلـې مـي بـوډۍ شـوې تـه رانغلـې

ماپـــه ســـل ژبـــو نـــارې درتـــه وهلـــې
ټـولې ژبـې مـي ګـونګۍ شـوې تـه رانغلـې

د تيـــارو ټکـــري کـــي ناســـته وم پيچلـــې
شـبګيرې مـي ليـونۍ شـوې تـه رانغلـې

پـه زاريـو مـي جرګـې د اوښـکو رانغلـې
پـه راويښـې مـي سـلګۍ شـوې تـه رانغلـې

پـــاس آســـمان دي د راتلـــو لاره څارلـــه
سـترګي سـپينې د سـپوږمۍ شـوې تـه رانغلـې

سـتوري لاړل د ښـکلا مجلـس ئـي مـات شـو
تـاريکۍ شـوې تروږمـۍ شـوې تـه رانغلـې

ازادۍ لکـــه هـــلال درپســـي ګـــورو
تـر تاځـار ښـکلې ځـوانۍ شـوې تـه رانغلـې

لـــه زاهـــده د غـــزل کـــوترې ولاړې
کـوه قـاف کـي شـاپيرۍ شـوې تـه رانغلـې

## هنر زما د کلي

پــــه ســـیل راوتلــی یــي پــر ســر زمـــا د کلــي
کـــه ځـــان دي خبـــروي پـــه کـــوم أثـــر زمـــا د کلـــي

شــــرنګايي د بنګړيــــو ده کړنګـــــايي د منګيــــو
دا کـــړک د خنـــدا اوري پـــر ګـــودر زمـــا د کلـــي

شــراب او شـــربتونه ســـرتېرلي بـــه دي هيـــر ســـي
پـــه شــګو کــي چينـــه لکـــه کـــوثر زمـــا د کلـــي

جرګـــــې د شـــــملورو دي ميلـــــې د برېتـــــورو
هرچاتــــه کـــار ويشـــلي دی تبـــر زمــا د کلـــي

وفـــا يـــي پـــه زلميـــو کـــي حيـــا يـــي پـــه نجليـــو
ســــخا او شــــجاعت لکـــه زيـــور زمـــا د کلـــي

هم اور شي، هم باران شي، هم اغزي شي هم ګلان شي
تـــه نـــه شـــي زده کـــولی دا هنـــر زمـــا د کلـــي

کــــه هغــــه جــــګ پــــوړيزه ده، خوښــــي ورپکــــي نشــــته
ښـــه زړه خوشـــالوي دغـــه منبـــر زمـــا د کلـــي

د هــر وطــن پــه جشــن کــي بــه دغــه کيســي وکــړې
کــه تيــر کــړې روژه مــات، کــوچنی اختــر زمــا د کلــي

خــو پــام ورســره کــړه لاس او ګريــوان ورســره نشــي
عجيبــــه دی بــــې باکــــه زورور زمــــا د کلــــي

زاهــد بــه درتــه وروســته پــه کــراره کيســې وکــړي
اوس وخـــت دی د لمانځـــه د مـــازيګر زمـــا د کلـــي

## (م)خپلواک

### زندان

څوک چې شوګیر کوي ترڅمکه لاندې لاره باسي
داسې دنرغونډې ملګري له حصاره باسي

ته په نایټ کلب کې دپایزیب شرنګاته خوب وړی وي
جانان امېل امېل لښکرې ترسهاره باسي

مونږ په سجدو شپه رڼوو ته دبادار په پښو کې
داغلامي به دې همیش داسې له کاره باسي

خوب مې لیده چې همدغه لښکربیاځان سمبال کړي
اوبیرته راشي تاپه زورله دغه ښاره باسي

هره ناهید ، هره ملاله چې خبره شي پرې
دننګ ټپه له خولې نه هسې بې اختیاره باسي

منګول یې تشه وي اوزیری دجانان پرې وشي
غاړې ته لاس کړي څوګلونه له خپل هاره باسي

که یې هرڅو ستادصلیب په څوکه ځوړند هم کړې
دغیب په مرسته داسې روغ سر، ستاله داره باسي



# کـــــــسات

څـوک مـې ارام زړه نـه ثبـات اخلـي
څوک مې لـه زړه نـه مناجـات اخلي

تـــش د شــــرابو په يو څوجـــامونو
زما دژونــــد آب حيـــات اخلـــي

د کليســـــا دعمارت پـــه خـــاطر
زمونږنــه ځمکــه دجومــات اخلــي

دبــت شــکن کــورکې بودا جــوړي
ښــکاري بــدل ،د ســومنات اخلــي

دخپــل کرســمس دراوســتولپاره
ورځ داخترشــــپه دبــرات اخلـــي

دفحاشـــۍ بـــازاريې تودســاتلی
رانــه تهــذيب اوعنعنــات اخلــي

ولــس بــه نلـري خپلـواک اقتصـاد
لـه پـې آرتـي ،نـه بـه خيـرات اخلي

پـه هريوځـای بـه دصـليب نښـان وي
لـــه ايوبيانوبـــه کســـات اخلـــي



خپلواکـه !دغـه بـه اجـل وي زمـونږ
زمونږبــه روح دغــه حــالات اخلــي

هرتـــرنم يـــو انعكـــا س هـــم لـــري
زمـــا نغمـــه ولـــي را غبرګـــه نشـــوه

بكـــره ارزو لا هســـي بكـــره پاتـــه
درقيـــب هيلـــه ځوانيمرګـــه نشـــوه

زمـــا دلـــيري وطـــن خـــوږه يـــاره
خـوږه مـي سـتا پـه ليدوسترګه نشـوه

تيـــره شـــوه تيره ،دنيـــا تيـــره اشـــنا !
خوســـتا توبـــه لاهـــم بزرګـــه نشـــوه

څــه عجيبــه غونــدي ګيلــه دي وكــړه
هيــره مــي ســتا ګيلــه ترمرګــه نشــوه

دا ځـل ګـولۍ درقيـب زړه تـه سـيخه
لكــه پخــوا تيــره تــر تخرګــه نشــوه

چې ترخپـل سر درقيب سر مخ ته كـړم
دا سي حمله خوبيا ځان مرګه نشـــــوه

# دُر محمد ګوهري

دُرمحمد ګوهري د ملانیک محمد اخندزاده صاحب زوی پر۱۳۳۳ل ،کال دلوګر ولایت دبرکي برک ولسوالۍ د ابراهیم خېلو کلي کي زوکړی دی.لومړنۍ دیني زده کړي یې له خپل پلار څخه او عصري هغه یې د کلي په ښوونځي کي ترلاسه کړي دي. دښوونځي څخه ترفراغت وروسته یې د پلار سیوری هم له سره پرېوت ،خو موریې تل درس ویلو ته هڅاوه .ثانوي زده کړي یې په مختلفو مدرسو په ځانګړې توګه دلوګر د پادخواب روغاني مدرسه کي ترسره کړې دي او دلوړو زده کړو لپاره جلال آباد ته ولاړ او هلته یې د پرله پسې شپږ کاله درس ویلو پرمهال شعروشاعري هم پیل کړه چي ترډېره حده یې تصوفي او د رسول صلی الله علیه وسلم توصیفي مضامین پکي انځورل.د ثوردکودتا په لومړیو کي یې ۲۲۰ شعرونه په لیکلې بڼه دلوګرد خوشکو په غره کي ښخ کړي ؤچي درا ایستلو پرمهال یې پرته له څو محدودو هغو نورټول او بوخراب کړي وو.۱۳۵۷ل کي پېښور ته مهاجر شو ،خو په ۱۳۵۸ل ،بیرته هیواد ته راستون شو ،په همدې کال یې په هغه ولسي پاڅون کي چي په پایله کي یې دبرکي برک ولسوالي ،دولایت مرکزاونوري سیمي ونیول شوې مخکښ رول درلود ،دغه رازنو موړي دخپل وروړپه ګډون په ډېرو جهادي عملیاتو کي ګډون کړی دی.موریې د اقتصادي ستونزو سره سره پرخپلوزامنو اصرارکاوه چي جهاد ته ولاړشي بالاخره یې یوزوی (عزیزمحمد )شهید شو اوګوهري صاحب یوازي دژوند سړو اوتودو ته اوږه ورکړه ،حتی بیابه هم په ډېرو جهادي عملیاتو کي برخه وال ؤ .په ۱۳۶۱ل ،بیا پېښور ته ولاړ هلته د حرکت انقلاب اسلامي له خوا د بیلا بیلو سیاسي ،فرهنګي او ټولنیزو دندو مشرتوب ورتر غاړې شو ، دنظامي محاذ په څېرېې فرهنګي ډګرهم ګرم ساته او د همدې لارې یې د دین او وطن لپاره نه ستړې کیدونکي هڅي ترسره کړې.نوموړي ته د حرکت انقلاب اسلامي د امیراو مرستیال له لوري په بیلا بیلو مواردو کي ستاینلیکونه ورکړل شویدي ،ښاغلی ګوهري نه یوازي تکړه شاعردی ،بلکي دیو هوډمن اوژمن لیکوال په توګه یې لیکني ،داستانونه او شعرونه په مطبوعاتو کي خپاره شوي دي.دغه راز د نوموړي شعرونه د هیواد ډېرو ترانه ویونکو ترڅنګ د ترنم پاچاه ملا فقیر محمد درویش هم پخپل خواږه ږغ کي مترنم کړي دي.د مجاهدنو بریالیتوب څخه وروسته هیواد ته راستون شو ،اود معارف په وزارت کي د مطبعې ریاست د مرستیال په حیث

مقررشو ،په کابل کي د تنظیمونو د خپل منځي جګړو په لومړیو کي یې پردفتر راکټ راپرېوت له نیکه مرغه ګوهري پکي بچ شو ،خود مهمو شخصي او جهادي اسنادو ترڅنګ یې د غوره اشعارپه نوم ناچاپ یوه شعري ټولګه هم وسوځیده ،دخپل منځي جګړودوام ته په پام یې دنده پرېښودله اوپه خپل کورکي په ورځنیو چارو مشغول شو.طالبانو چي کابل ونیو ګوهري د افغانستان راډیو د هنراوادب دڅانګي رئیس وټاکل شواو د طالبانو دواکمنۍ ترپایه پرهمدې دنده پا ته شو.

دوینو دریاب ، دلعلونو خزانه ، تېرماښام ، سارایې خیالونه یې چاپ شوي شعري مجموعې دي ، غوره اشعار،اوریښتیني مینه یې ناچاپ اثاردي ،

ګوهري دجهاد ،خپلواکۍ ،سوکالۍ ،ترقۍ اوملي وحدت په دوو بنستیزو محاذونو (سنګراودفتر)کي خورا قدرور خدمتونه کړي دي ،خواوس دعمرد زیاتوب اونامساعده شرایطو له امله په خپل کورکي شپې سباکوي په پای کي داهم دښاغلي ګوهري دمنظوم کلام نمونې.

احساسه وینې شه راژوندی شه بیا غزل ولیکه
بیا غزل بول روغ لیونی شه بیا غزل ولیکه

مړاوو رګو کې مې بیا وینه په غورځنګ راوله
زما احساسه رازلمی شه بیا غزل ولیکه

دځوانیمرګو جنازي ویني که نه یې ویني
قلمه ړوند شي ګړندی شه بیا غزل ولیکه

مومن ولس کې راژوندی کړه بیا مړژواندې هیله
دوخت حسان شه روغ سړی شه ، بیا غزل ولیکه

دملالۍ ټپي دې غوږ ته رسیدلي کنه ؟
د سپین بولدک دغرو زمری شه بیا غزل ولیکه

بیا ګورګینانو زمونږ حریم باندي یرغل کړی دی
ګوهري پاڅه توریالی شه بیا غزل ولیکه

# د هر چا خبره نه منم

نــه شــمه منلــی د هــر چــا خبــره نــه مــنم
نــه مــنم د روس او امریکــا خبــره نــه مــنم

خپلــه ازادي لــرو ، نــړۍ کــې یــو ازاد ملــت
ځکــه د نــاټو او د وارســا خبــره نــه مــنم

زما په سرنوشت یې چې ټول عمر لوبې کړې دي
زه ددې خونخــوارو د خنــدا خبــره نــه مــنم

ځکي چې د شرابو په ځای وینې د مظلوم ولس
هیڅکلــه د داســې بــې پــروا خبــره نــه مــنم

روس او امریکـا کـې چې زمـوږه فیصلې کیـږي
زه د ښــکیلاک ګــرو د دنیــا خبــره نــه مــنم

درست عمر کې موږ د نورو خلکو فیصلې کړي
ځکــه اوس د داســې چاماچــا خبــره نــه مــنم

مـا د خـدای پـه امـر سـتر جهـاد تـه مـلا تړلـې ده
نــه مــنم د ګبــر د ترســا خبــره نــه مــنم

مرسته که د خدای راسره مل وه مخ په وړاندې ځو
چاتــه بــه تســلیم نــه شــمه دا خبــره نــه مــنم

بې لـه یـو الله نـه بـه مې سر بـل چاتـه ټیټ نـه شي
زه د ســر ټیټــۍ غونــدې رســوا خبــره نــه مــنم

واوره ګوهري، څو چې مرام زموږ پوره نه شي
زه تــر هغــو پــورې د هیچــا خبــره نــه مــنم

# دوست محمد ظهير

دوست محمد (ګلالی ظهير) دعيسى محمدزوی پر ۱۳۵۴ل، کال دکندهارولايت د پنجوايي ولسوالۍ دناخوني په کلي کي زيږيدلی. ابتدايي ديني زدکړي يې دکلي دملاامام څخه پيل کړي، وروسته يې بيادبلوچستان ايالت دافغان مهاجروپه پنجپايي نومي پنډغالي کي لومړنۍ اومنځنۍ زدکړي دحضرت علي رضی الله عنه په ښوونځي کي ترسره کړي دي.

ګلالی ظهير دښه نيت، تاوده احساس اوسپين زړګي څښتن دی، عالي ارمان يې دخپل ځوريدلي ولس خپلواکي، سوکالي، دنړيوالواوګاونډيانوله احتياج څخه خلاصون اوددينې اوعصري علومو په زېورسينګاردی.

دظهيرله ډيري مودې دشعروشاعرۍ سره مينه وه، پنځلس کاله مخکي يې لومړی شعرليکلی، خودکوراوټولنيزوستونزوله امله څوواره له شاعرۍ څخه مرورشوی، مګرلږوخت وروسته يې زړه نه دی صبرشوی بيرته يې غيږورته خلاصه کړې ده. نومړي دافغان ولس تاريخي برياوي، پراصفهان اوډيلي يې دراج داستانونه، په لته بنداو ميوندکي دفرنګيانودککروډيرانونه اودسرولښکرومنډي په ډيروشعرونوکي ترسيم کړي دي. شعرونه يې دشمېرله پلوه لږدي، خوپه وينايې که بياهم خپل تيت وپرک شعرونه سره راټول کړي نويوه ټولګه کيږي. ځيني غزلونه يې په طلوع افغان ورځپاڼه اويو شمېرنوروخپرونوکي خپاره شوي دي اودغه رازڅه ترانې يې مترنمي شوي هم دي.

ظهيرپه مختلفوفورمونوکي شعرونه ليکلي دي، دبېلګې په توګه يې لاندي نمونې ستاسي مخته ايږدو.





لا یې سینه کې غورځنګونه د مستۍ پاته دي
لا په میوند کې خوناړې د ملالۍ پاته دي

موږ چې ګټلی استقلال پرې تاریخونه ګواه
لا مو لاسو کې تېرې توري پښتانۍ پاته دي

نشي مونږ لای ټیټېدل دا پولادي سرونه
چې یې سینو کې مستي هیلې میړنۍ پاته دي

چې وو را غلي زموږ و کلي ته مغرور لیوني
خلګو ویل په تیښته لاړل ترې څپلۍ پاته دي

دلتبند حماسه وینم د تاریخ پرپاڼه
چې نښانې یې لا تر اوسه ککرۍ پاته دي

غلیمه واوره ترسرتېرد اسې زلمي لرو هر
ولاړ چمتو په انتظار د قربانۍ پاته دي

واربه مو پاته نشي تا پسې د غرب بې دینه
یو لاس کې توره بل کې غشي اولیندۍ پاته دي

ظهیره دلته خړ لیوان شپې تېرولای نشي
په دې هیواد کې چې بچې لا د زمرۍ پاته دي





## دنیو یارک نازولي ته !

تـــاددې وطـــن زمریـــان دي څـــه لیـــدلي
راشـــه راشـــه تاغازیـــان دي څـــه لیـــدلي

دګـــورګین قبرتـــه ورشـــه درتـــه وایـــې
تابچیـــان دمیـــرویس خـــان دي څـــه لیـــدلي

دحیـــرت ګـــوتي بـــه وچیچـــې پـــه خولـــه کـــې
تاســـرتېري فـــدایان دي څـــه لیـــدلي

دنیویـــارک دنازولوکـــارېې نـــه دی
تـــازیږه زیـــږه ځوانـــان د ي څـــه لیـــدلي

دزخمـــي زمـــري پنجـــوکي یـــې لویـــدلی
تابهـــادره افغانـــان دي څـــه لیـــدلي

خپـــل پـــه خوښـــه داجـــل غیـــږې تـــه راغلـــې
تـــاایوب اواکبرخـــان دي څـــه لیـــدلي

بـــې ســـنګره مـــرګ پیغوروځانـــه تـــه بولـــو
تامیونـــدکي شـــهیدان دي څـــه لیـــدلي

ظهیـــروایم دســـرتیروکاردي خـــلاص دی
تاهلمنـــدکي خپـــل پوځیـــان دي څـــه لیـــدلي



# ډالـــــــره

قـــدردي ډېرشـــوباعزته پرجهـــان ډالـــره
ځکـه چـي نـن دي اطاعـت کـوي انسـان ډالـره

ډېرعاشقان ستاپه طلب دي بـل څـه نـه پيژني
تـه يـې ليلاتـه يـې مـذهب تـه يـې جانـا ن ډالـره

ســتاارمانونه پرزړګــي دلحدکنــدي تــه وړي
دډېـــرو هــم درپســـي ووتـــل نوکـــان ډالــره

نـه يـم خبرڅـومره جـادودي پـه ښکلاکي نغښتی
چـي هـم ترځـان هـم ترباباپـې ورتـه ګـران ډالـره

نـوريې عــلاج پــه طبيبانوبانـدي نشـي کيـدای
کــه شــول پــه تاپســي يــوځلي ليونيــان ډالــره

دښايسـته ايمـان يـې درکـړه قبالـه پـه دسـخط
ډېربې وفـايې تـه يـې نـه کـړې دخپـل ځـان ډالـره

سپېره څېـره جـوړکړی يـې دواشـنګتن بـې دينـو
قدربــه درنــه کــړي وتاتــه ظهير، جــان ډالــره !



# رازمحمد ساقي يار

رازمحمد ساقیار دحاجي فیض محمد زوی د۱۳۴۵ل،کال داسد دمیاشتي په ۱۴مه نیټه دزابل ولایت د مرکز اړوند دجلال کاریز دعمرخیلو په کلي کي وزیږید . ابتدايي زده کړې يې دزابل ولایت په بیلوبیلو سیمو کي ترسره کړې ،په ۱۳۵۸ل،کال کي يې پاکستان ته هجرت وکړ اوهلته يې په مختلفو مدرسو کي زده کړوته دام ورکړ اودبشپړتیاتر پوړیو يې ورسولې. دطالبانو دا سلامي غورځنګ په راټوکیدو ددغه تحریک سره ملګری شو ،دملګرو په ملتیا په فراه کي دشراوفساد پرضد دجهاد لومړۍ کرښې ته ولاړ ،ترڅه وخت تیرولو وروسته دهمدې ولایت فراه رود کي زخمي شو اوتردرملني (جوړیدو ) وروسته يې په میدان ښاراوچهار اسیاب اوبیاجبل سراج کي دجګړې په لومړیو کرښو کي برخه واخیسته.

ښاغلی ساقیار دهرات ولایت دراډیو او تلویزیون رئیس ،دغه رازدنوموړي ولایت د عودت مهاجرین رئیس اودزابل ولایت داطلاعاتو او کلتور ریاست په دندو پاته شوی دی .دامریکایي یرغلګرودراتګ وروسته بیاپاکستان ته مهاجرشوی او هلته يې دیوې دیني او تعلیمي ادارې (سرفراز پبلیک سکول ) دښوونکي په توګه څلورکاله وظیفه ترسره کړې ده اووروسته يې شخصي کاروبار(تجارت )ته مخه کړې تراوسه په همدې چاروبوخت دی.

ساقیاردکلک هوډ ،،روڼ فکر ،ښایسته اخلاقو ،حاضرځوابۍ اومزاحي طبیعت خاونددی ،له شعر اوشاعرۍ سره يې له کمکي توبه مینه لرلې اووروسته يې خپله هم په شعر لیکلو پیل کړی ،دخپل ژوند اوټولني خوږې اوترخې خاطرې ،اوجهادي منظرې يې دنظم په مختلفو فورمونو کي انځورکړي دي، دايې هم دشعر نمونې:

## څلوریځه

باري ستا په رحمتونو مي تسل کړې    دوَ یَلې کلمې له برکته

ستاکرم په دم قدم را سره مل کړې    درست وجود مي ستادمینې یومشعل کړې

ښه مونصیب کړې دښو څښتنه    که ستا له لوري احسان ونشي

شیطان موبیل کړې له ځان اوتنه    تنهامو نشي په ځان بسنه



## مثنوي

ستمګر مې دا تل پر سر انعام ږدي
د شیطان بچي خندونه ګام په ګام ږدي

په ډالرو اتلان اخلي کافر دي
زموږ له هوډ او سر ښند نې نه منکر دي

اوس یې دا خاوره مرینو ته زندان شوه
زندان څه چه درا غلیو قبرستان شوه

په مدار مدار میدان پریږدي له جنګه
توري شاته کړل غربیان له خپل آهنګه

له بیړیو به را خلاص کړم مړوندونه
دغازي له پښو به مات کړم اولچکونه

زندانو نو نه به جوړ کړم میدانونه
یا به بند کړم پکي ټول یاغي سرونه

ککرۍ د میر خمنو په نشتر وړم
دغربي غلیم پر لوري به لښکر وړم

د میر خي پر لور به یوسم تاړاکونه
له اوږو نه به یې ووهم سرونه

دډارن غلیم په زړه به غشي ښخ کړم
د افغان او مسلمان زړه به په یخ کړم

دظـــالم لاس بـه دشا لـوري ته تـاو كـــړم
دمظلوم ګريوان به خلاص له دې چنګاو كړم

لو جـــرګه بـــه يې چـــوپړتـــه نـــوي پنډه
دا راغــــــلي صـليبيـــان بـه ځـي په منډه

دغربي خوني ښامار ستونـــى بـــه پـــرې كړم
دا مغــرورې ككـــرۍ بـــه ځِـــر ځِـرې كړم

قطــــارونــــه دغـــليم به تــــارومار كړم
دا ياغـــي بـــاغي ســـرونه به مهـــار كړم

لاس تـــړلي بـــــه يې راولــــم تـــر داره
قـــــاتلان داولســـــونو لــــــه مـــزاره

دا هـــــيواد بـــه دا سلام په نـوم آزاد كړم
رالـــــــيږلي دشيطـــــــان به نامراد كړم

دفـــــرنګ تــــر زړه بـه وبـاسم سـيخونه
دوبــــاره بـــه راژ ونـــدي كـړم اولسونه

يـــو اُمـــت بـــه ديـــوې نـړۍ واكـــدار وي
خــــلافت به دا ســـلام پـــه هــــر ديــار وي

بتكــــــدې دبت پــــرستو بـــه نـــړيـــږي
نـــه بــه پـاپ تـــه دښـــكلا نـاوې ګډيږي

ديـــوې قـــبلې پـــر لـوري بــه ســجده كړو
نـــه بـــه بُت او نـــه بــه رام تـه نعـره كــړو

# سیف مومند

سـیف الـرحمن مومنـد دګـل الـرحمن مومنـدزوی لـه آره دننګرهارولایـت دمومنددرې ولسوالۍ دباسول دکلي دی ،خوزوکړه یـې د۱۳۴۲ل،کال دقوس پـه شلمه نیټه خوست ولایت کې شوې ده.لومړنۍ اوثانوي عصري اودیني زده کړې یـې ترسره کړې دي ،خودډیروهیوادوالوپه شان یې کورنۍ اوهیوادنۍ ستونزې دعالي تحصیلاتومخ ته خنډشوي دي.

پرافغانستان دسرولښکرودیرغل لـه کبلـه یـې شمالي وزیرستان تـه هجرت کړی دی ،په میرانشاه کې یې د«وحدت ادبي ټولني»په رامنځته کولوکې مهم رول لوبولی دی.

ښاغلی سیف مومندکابوله دیرشوکالوراهیسي شعرلیکي ،پـه وزیرستان او ورنـژدې سیموکې پـه مهموغونډواوجلسوکې ددریځ (سټیج) سمبالوني چـارې ترسره کوي اوپه خورازړه راکښونکي ډول یې پرمخ وړي .دنظم ترڅنګ یې دنثرپه ارت میدان کې هم دقلم اوفکرنیلی ځغلولی دی ،ښایسته سیاسي اوادبي مقالې اولنډې کیسې یې لیکلي دي او پـه زړه پـوري منظوم اومنثوراثارېې لیکلي ځیني یې دچاپ په ګېڼه پسولل شوي اونورهغه یې دچاپ لارې څاري.

دا هم دښاغلي مومند چاپ اوناچاپ اثارونمونه اودمنظوم کلام نمونې یې:

ډکه جولۍ (دیني اوساینسي معلوماتي مجموعه)،څانګه به نن سبا کې ګل شـي (ادبـي تـذکره)،سـوکونه اوټانګونـه (شـعري ټولګـه)،دزړه وینـې (دغزلومجموعه)،تورمخي (دلنډو کیسو او افسانو ټولګه)، رنګین سفر (دادبي اونقدي مقالو ټولګه).





ناست په شپه کې یم دخپل زړګي پرهـــارته
داڅــــراغ بــــه رسـومه آن سهــــارته

دخــــوارانو لـه جونګـــړو لــوګي خـــيږي
یاکـه سپاندې ورګـوزار کـړې چـا انــــګارته

دشـین ستــرګـــو قـافلې تـه لارې څـــاري
کـــه زمـري کمـین نیـولی دی کـوم ښــکارته

یوخــــونه دی ټـول جهـان منصـور منصـور دی
وخـت بـه کـــوم یـو منصـور وخيژوي دارتــه

دایـي نېغ دبرنــــدو سترګـــو تـــور بانـه دي
کــــه طالـب راکـټ سم کـــړی دی ګزارتــه

ګـــوندې تللـي زلمـي بیـا پرې راشـي سـیفه
غــــړومه مـــــدام سـترګې هغـــې لارتــه



# اهل صفه

روس مـو تښتولی امریکـامو مخـه نـه وینـي
ما تـه یـې خـوړلې برتانیامومخـه نـه وینـي

ځوانې حوصلې ځوانې جذبې اوالهـي نصـرت
دامـو چې پـه برخـه وي دنیـا مـو مخـه نـه وینـي

قیصـر اوکسـرا زمـونږ اسـلافو پرځـولي دي
مـونږ (اهـل صـفه ) یـو کلیسـامو مخـه نـه وینـي

فتحـه اونصـرت مـو پـه قـدم قـدم ملګـري دي
وایمـه رښـتیا چې پـه رښـتیامو مخـه نـه وینـي

مونږ پـه خدای توکل کړی میدان تـه راوتلي یـو
ټـول کفـارراجمع دي خوبیـا مومخـه نـه وینـی

مـونږ فـدایان یـو دسـرونو پروانـه لـرو
مـرګ تـه پـه خندا ورځو پـه دامـو مخـه نـه وینـي

کبرنـه موو سـاتې پـه خـدای بانـدې یقـین لـرو
سـیفه نـن خو څه کـوې سبا مـو مخـه نـه وینـي

# سردار محمد شکیب

سردار محمد شکیب پر ۱۳۵۴ ل، کال دزابل ولایت شاجوی ولسوالۍ دغبرګۍ دچینې په کلي کې درازمحمداکا په کاله کې زیږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې دزابل ولایت په مختلفو درسونو او جوماتونو کې ترسره کړي او منځنۍ زده کړې یې دبلوچیستان ایالت پلازمېنې (کوټه) او کراچۍ کې په بیلابیلو مدرسو کې ترلاسه کړې دي. شکیب صاحب د طالبانو د اسلامي تحریک په اډانه کې په پوځي او فرهنګي محاذونو کې پام وړ هڅې وکړې په تېره دکندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست کې یې نه هیریدونکي خدمتونه ترسره کړل. دکندهار ولایت چې داخلي جګړو نسبتاً ډیر ځپلی ؤ، دولتي او شخصي بنسټونه یې تر ډیره حده وران شوي ؤ، آن د تعلیمي او فرهنګي ادارو فعالیت یې په ټپه ولاړ ؤ، د دغه ولایت د اطلاعاتو او کلتور چارواکو هم د نورو امنیتي او تعلیمي ارګانونو په څېر د خپلې ادارې د بیلابیلو څانګو د پرمختګ په موخه ډیرې هڅې وکړې چې ښه نتیجه ترې ترلاسه شوه، د همدې ریاست په اداري او نشراتي برخه کې ډیر پرمختګونه او سهولتونه رامنځته شول د شریعت ږغ راډیو فعاله او سهار و ماښام یې په ساعتونو ساعتونو خپروني پیل کړې، طلوع افغان اخبار او کندهار مجله تر او رده ځنډ وروسته بیا په فعالیت او خپریدو پیل وکړ، خلافت مجله او ارغند جریده تأسیس شوه، په اداري برخه کې یې هم ښه پرمختګ وشو، مثلاً د ټیپیسټ ځای کمپیوټرونیو چې هماغه مهال یو ښه ساري پرمختګ ؤ، شکیب یوازینی شخص ؤ چې کمپیوټر یې سمبالولای شوای او د دغه ریاست یادو شوو چاپي خپرونو ته یې په مبتکر فکر او هنري ګوتو خوراښکلا او ځلا وروبخښله.

شکیب د طلوع افغان ورځپاڼې تخنیکي او قلمي همکار، د خلافت مجلې مسؤل مدیر او د عزم مجلې د تحریري هیئت غړی او لیکوال پاته شوی دی. نوموړي د فرهنګي هڅو سربیره په پوځي برخه کې په میدان ښار، شمالي او مزار شریف کې د جګړې تودې سرې هم ګاللي او د امریکایي یرغل وروسته یې بیا هم د پوځي او فرهنګي جهاد په ګڼو سنګرونه کې برخه اخیستې ده.

ښاغلی شکیب د پیاوړي استعداد، ښې مطالعې، غښتلي استدلال، استقامت او اخلاص خاوند و ښې ځوان دی، شاعر، لیکوال او ژورنالیست دی، سیاسي او علمي مقالې، ازاد او قافیه وال شعرونه او دورځنیو تودو پیښو ګڼ راپورونه یې لیکلي دي. دا هم د شکیب د منظوم کلام بېلګې.



## زور

لـه بـره راشـي، د ګرېـوان پـر ښـکلي چـم پـر ېـوزي
څو سترګې او ښکې مې له سترګو نه هر دم پرېوزي

د زړه پـر تخـت کـه مــې زخمونـه جـوړوي رقيبـان
د يقــين تــوري مــې پــر زړه لکــه مــرهم پرېــوزي

د ګلـو څـانګې بـه شـي تـاوې لـه سـکروټو ځنـې
پــر هــره پاڼــه بــه رحمــت لکــه شــبنم پرېــوزي

څومره ساده دي هغـه خلـک چـې لا نـور نـه منـي
ګنــې د ســتورو قــافلې بــه پــر عــالم پرېــوزي

د مظلـوم او ښـکې بـې څـه مـه ګڼـه، شـکېبه يـاره!
يو وخـت بـه دا هـم پـر کلنـتېن لکـه اټـم پرېـوزي.

## پرونۍ وعدې

پرېږدئ چې وسوځم، لوګی لوګی شم
پرېږدئ ستې شم
زه د پتنګ په څېر لمبو ته دانګم
پرې چې لوزونه مو نيمګړي نه شي،
ها پرونۍ وعدې مو ماتې نه شي
زه چې ازل کې لا د مينې په ټالو زنګېدم
او هغه شېبه
د لېونو زندان ته وهڅېدم،
نو ځکه اوس هم، د هغې مينې

تنکي خيالونه،
زما په رګونو کې غورځنګ کوي ،ټوپونه وهي
او رانه غواړي چې لمبه لمبه شم،
زه يې هم سرو اورو ته ونځېږم
و سرو سکروټو ته يې وغورځېږم
لا د همدې مينې په تور
ځان ته زندان او هتکړۍ لټوم،
چې زولانه شم او جنون غوره کړم
ددې زمان له نيرنګونونه پردی پاتې شم؛
خو:
زه له قسمت سره پوخلا نه يمه
يا دا فلک راته اغزن اغزن خوبونهويني
يا دا اسمان په ماښيجن ذهن کې
د تش غرور خيالونه غورځي راته
يا يې په زړه کې پټ اورونه شنه دي؛
چې يې بڅري زما تر خوا رااوري
راته په قهر قهر ګوري او رمزونه لري
خو زه،
له دغې مينې تېرېدلا ی نه شم
هغه وعدې هم ماتولای نه شم
زه د پتنګ په شان له شمعې بېلېدلای نه شم
پرېږدئ چې وسوځم،لوګی-لوګی شم.

۱۳۷۹\۱۲\تله ۱۲\ ل.کندهار

# سمیع الله تړون

سمیع الله تړون د حاجی مکرم خان زوی پر ۱۳۵۹ل ،کال د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ د کرمول په کلی کې زیږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې په باجوړ کې او ثانوی هغه یې د کونړ په عمراخان لیسه کې تر سره کړې دي اولوړې زده کړې یې د ننگرهار پوهنتون په حقوقو پوهنځي کې تر لاسه کړې دي. ښاغلی تړون دروڼ فکر ،پاک ملي احساس اولوړجرئت خاوندوینې ځوان دی .دچادزراوزروتراغیزلاندي نه راځي تورته توراوسپین ته سپین وایې دښکېلاک چوپړماران غندي او پرضدیې میدان ته راوتلي ځوانا ن د شعرپه لطیفه ژبه ستایې:

یرغل راوړی دی اغیار ځوانان له کوره وتي
زمونږ د کلي نه د کار ځوانان له کوره وتي
سپینه ماښې به دې په تورو لوگو توره کاندې
یو ځل به بیا درکړي گوزار ځوانان له کوره وتي
بس دا تړون ساده سړی دی چې په کورکې ناست دی
په دې وطن کې خو هوښیار ځوانان له کوره وتي

ښاغلی تړون دا مهال په کونړکي شپې سبا کوي ،په لره اوبره پښتونخوا کې چي کومه لویه مشاعره وي نو هرومروورته رابلل کیږي اودی (تړون )یې هم بلنه په ورینه تندہ مني .تړون ،دهغوشاعرانوپه سرکي راځي چي دمشاعروگډونوال یې په لوړاوازپه بیاووایه – بیاووایه !بدرگه کوي. له څوکلونوراهیسی شعر لیکي چې تر اوسه یې دري شعري مجموعې :« تاته دي درپاتي وي، زه دي نور نوم په ژبه نه اخلمه اودبلا لاس »په نوم چاپ شوي دي .



# غزل

زه چې یې ژوندی کړمه نو ما الله ته وژړل
پورته هغه خلک شول چې چا الله ته وژړل

اوس چې مور ته غږ کوم نو غږ په بسم الله کوم
ما له اول سر په بسم الله الله ته وژړل

سره وه تکه سره وه په سرو وینو لمبېدلې وه
ځکه په سرو وینو کربلا الله ته وژړل

مونږ چې رقیب واخیستو په مخه بېلولو یې
مونږ په چغو چغو واوېلا الله ته وژړل

بیا به د صلیب په ککرۍ میخونه ټکوهو
بیا زمونږ په کلي کې ملا الله ته وژړل

نن به خامخا رقیبه مور دربانده بوره شي
نن د شهید مور په شین سبا الله ته وژړل

بیا دې لېونۍ مینه ترونه لېونۍ شوله
بیا دې غلي غلي په خندا الله ته وژړل





# غـــــــزل

مــونږ همیشــه د زورورو ســره جنــګ کــړی دی
مـونږ همیشـه پـه مظلومـانو بانـدی ننګ کـړی دی

د هــر یرغــل مقــابلی تــه ښــه پــه نــره ورغــو
کــه دا یرغــل کلــه مغــل کلــه پرنــګ کــړی دی

تــوره مــو تــل د دښــمن وینــو بانــدی ســره ګرځــوو
تــوری مــو تیکــی نــه لیــدلی نــه یــی زنــګ کــړی دی

ســتا پــه کتــاب کــی مــو همــدا ده نږیوالــه ګنــاه
چــی د باطــل او نــاروا و نــه مــو خنــګ کــړی دی

مونږدبنګړیوشرنګ ته شرنګ نه وایوسردی وخوری
زمــونږه روح تــه پــه ازل کــی تــورو شــرنګ کــړی دی

مــونږ ملنګــانو ملنګــی ســره تــړون کــړی دی
نصیب یی خوار شی چی ازار چاته ملنګ کړی دی

## زه مې په تندي اسلامي مهر د طالب وهم

کبر غرور نه کړمه ملنګ ملنګ په لاره ځم
سر ټيټوی نه شمه ښکاره او دنګ په لاره ځم
زه مې د بابا د توري لاستي ښکلومه تل
زه د حماسو او غورځنګونو ننګ په لاره ځم
ستا غوندې په زغرو پټ ډارن نه يم ښکاره ګرځم
ته خو راته وګوره رقيبه څنګ په لاره ځم
اوس مې څملولی يي اوس سوله سوله مه کوه
اوس زه انتقام اخلمه زه د جنګ په لاره ځم

تا به مې تندی داغه او زه به درته غلی اوم
نور د شيخ فريد په پاليسۍ کی ګټه نشته دی
مونږ نه يي افغاني پښتنی پيغلې سرتورې کړې
دې توره بلا ديموکراسۍ کی ګټه نشته دی
مونږ به د خدای په رسۍ خپلې ګوتې کلکې کړو
تاسو چی نيولې دې رسې کې ګټه نشته دی
زه د چا د زور د چا د زرو پروا نه کوم
سپينه شاعري کړم چاپلوسۍ کې ګټه نشته دی

اوس زمونږ وطن کې د پرديو کاروانونه دی
اوس خو به ازاده خپل وطن کې ګرځيدی نه شو
مونږ نه ازادي وينه او سر غواړي مزل غواړي
مونږ خو ويده يو په بړستن کی ګرځيدی نه شو
ځه شپانه رمه دې د ليلام په لاره سيده کړه

نور د دغه غرونو په لمن کې ګرځیدی نه شو
مونږه د غفلت څادر کې داسې ځان تاو کړی دی
سم لکه د مړو په کفن کې ګرځیدی نه شو

ولې زما دین زما ایمان پسې دې وخندل
ای صلیبي ولي په قران پسې دې وخندل
تا د انسانیت څادر په سر کړ که دې څیري کړ
تا خو انسان وواژه انسان پسې دې وخندل
دا د حق لښکرې په توپونو ایساریږي نه
ډیر تاوان دې وکړ مسلمان پسې دې وخندل
اوس دې ککرۍ راټولوه په دښتو غرونو کې
ولې دې غریب افغانستان پسې دې وخندل

زه مې کلیمه له سر ترم میدان ته وځم
زه مې په تندي اسلامي مهر د طالب وهم
زه دښکرورو سره ښکر وهم په مخکې ځم
ستا غوندې خو نه یم چې کمزوری او غریب وهم
یا به ککرۍ په وینو سره خدای ته ورولیږم
یا به دا کافره ککرۍ د دې رقیب وهم
ما ته د سلطان صلاح الدین توره راپاتي ده
زه به په دې توره باندی خامخا صلیب وهم

ما د میرویس خان بچو ته غږ کړی چی پورته شی
زه مې دافغان په ټول وطن کی ګرځیدلی یم
زه د انقلاب سره توده څپیره پیژنم
زه خو ګام په ګام په انقلاب کی لوبیدلی یم

دا مي کمزوري نه ده ګوزار ته جوړومه ځان
روغ دي په تندی ولمه ځکه درته غلی یم
ما په سرجنګۍ کې همیشه میدان ګټلی دی
ته به مې سبا منې پرون دې پلار منلی یم

سل کلونه وشول او په سلو تورو ولګید
څومره عجیبه ده لا هماغسې دنګ سر لرم
ستا وچ او لامده فوځونه کله ټینګیدلی شی
زه چې مې په ژبه غږ د الله اکبر لرم
سل کلونه وروسته مي بیا هم د وینو پوراخلي
زه داسې یو قام لرمه زه داسې ټبر لرم
اوس مې هم لښکر د ابوبکر نه خالي نه دی
اوس زه هم عثمان لرم علي لرم عمر لرم

ما د خپل وطن د شهیدانو وینې جمع کړې
اوس زما قلم ته ترې توده توده سایي راځي
زه په عمري عزم سنبال مجاهدین لرم
ستاسو که لښکرې زمیني که هوایي راځي
اوس به د جومات او کلیسا مقابله کیږي
اوس خو به په حق او په باطل کې جدایي راځي
بیا د صلیبیانو رنګ الوتی ملا یي ماته ده
چا ورته ویلي په دې لاره فدایي راځي

# سميع الله ايوبي

شهيد مولوي سميع الله ايوبي چې اصلي نوم يې «محمد »ؤ، د مولوي محمد ايوب زوی د **۱۳۵۷**ل، کال د ثور پر**۲۲** مه نيټه د لوګر ولايت د برکي برک ولسوالۍ د سجاوند د سيمې په قطب خيلو کلي کې دنيا ته راغلی دی. ابتدايي زده کړې يې له خپل پلار( مولوي محمد ايوب )څخه ترسره کړې او وروسته په **۱۳۷۳** کال کې ګاونډي هيواد پاکستان ته د ديني زدکړو لپاره تللی دی ،هلته يې په مختلفو مدرسو کې يې له زدکړو وروسته په ۱۳۸۱ ل، کال هنګو ته نږدې د کاهي په سراج الاسلام مدرسه کې د حديثو دوره ترسره کړې ده.

شهيد ايوبي له فراغت وروسته په بيلابيلو مدرسو کې د تدريس سپېڅلې دنده پرمخ وړې او د مروج تعليمي نصاب کتابونه يې د تکميل ترپوړۍ په بيا بيا تدريس کړي دي.

ايوبي د امريکايي – صليبي يرغل په وړاندې د جهادي کاروان هغه باکماله سرسپارلی سپاهي ؤ چې په ټوپک ،قلم او ژبه يې د دين او وطن څخه دفاع په لارکې ډېرزيات خدمتونه کړي دي ، نوموړي له تدريس ، جهاد او شعر ليکلو سره په څنګ کې د تصنيف سلسله هم جاري ساتلې وه ،په لنډه موده کې يې په مختلفو کتابونو شروحات وليکل چې مهم يې په لاندې ډول دي.

حل ايوبي على الحسامي ، ايوبي في حل مشكلات القطبي ، حل سجاوندي علي مير ايساغوجي ، کشف المخفيات على المرقات ، په تلويح باندې حاشيه.

دا هم د شهيد ايوبي د کلام نمونه

## دسنگر ځوان ته

دځـــوانۍ ډیـــوه دې تتـــه مـــه شـــه ځوانـــه
ستا سپوږمۍ لـه دنیـا ښـکته مـه شـه ځوانـه

دنــرۍ رڼـــرې هـــالې نـــه دې قربـــان شـــم
داهالـــه بـــې بشـــارته مـــه شـــه ځوانـــه

نرګســـي ســـترګې دې مـــه شـــه نظـــر بانـــدې
ســـتا لالـــه بـــې فصـــاحته مـــه شـــه ځوانـــه

دابـــرو خنجـــر دې خـــدای بـــې آبـــرو مـــه کـــړه
تنـــده ســـتا بـــې کرامتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

تېـــره تـــوره دې دبرېتـــو تېـــره ســـاته
ســـتا وســـله بـــې تربیتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

ســـتاپه زلفـــو کـــې رانښـــکېل دی تمـــام کلـــی
جـــال دې تـــول لـــه دې مالتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

ستادهســـکې شـــملې دنګـــې ځـــوانۍ ســـتوری
لـــه مظلـــوم اولـــس اوچتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

تـــه دزړونـــو خریـــداریـــې پـــه اخلاقـــو
ځـــواک محـــروم ســـتاله ســـیرته مـــه شـــه ځوانـــه

خـــدای دې ســـاته لـــه بـــدبینو نظرونـــو
قـــد قامـــت دې بـــې طاقتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

دنـــړۍ دمســـــلمانو دســـــرتاج یـــــې
دغـــه تـــاج یـــې بـــې زینتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

هرکـــافر تـــه یـــې کـــټ مـــټ دســـترګو خلـــی
پـــه امـــان ســـتا لـــه هیبتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

ایـــــوبي دې ترتلـــــه درســـــره وي
درنـــه بېـــل آن ترجنتـــه مـــه شـــه ځوانـــه

# شپونکی

استاد شپونکی صاحب پر (۱۳۴۹هـ ش) کال دکابل ولایت دچهارآسیاب ولسوالۍ د(خیرآباد ) په کلي کې زیږیدلی دی ، لومړنۍ زده کړې یې دکابل ښار د(چهاردهي) په یوه مکتب کړي دي. په (۱۳۶۳ هـ ش) کال کې پاکستان ته له خپلې کورنۍ سره مهاجر شوی دی ، ثانوي تعلیم یې هورې دمهاجرینو په یوه مدرسه کې بشپړکړی ، ترې وروسته یې په بیلا بیلو دینې مدارسوکې لغوي او شرعی علوم لوستي او په پای کې یې د پیښور ښار په امدادالعلوم مدرسه کې دمبارکو احادیثو دوره کړې ده.

ښاغلي شپونکي دعمرپه اتلس کلنۍ کې دروسانوخلاف جهادکي برخه اخیستې اوبیا یې ترنن پوري دجهاداودعوت په مختلفوموچلونوکي پام وړخدمتونه کړي دي. له تیروشلو کلونو راهیسې داسلامې علومو ، اسلامې تاریخ، عربې ژبې او د شرق او غرب ترمنځ دفکرې کشمکش دمضامینو په تدریس بوخت دی. «دمسلمانانو د عروج او زوال د اسبابو او عواملو پیژندل»مضمون یې ډیرخوښ دی او په همدې موضوع باندې یې په بیلابیلو ژبو کې په زرہ پوري مضامین لیکلي دي.

د اسلام دهر اړخیزې مطالعې په رڼا کې کمونیزم ، لیبرالیزم، هیومنیزم، ماډرنیزم، دیموکراسي، او دیته ورته فلسفې او نظریات ورته د جاهلیت معاصر شکلونه ښکاري. ددغو نظریاتو پیروان او دهغو ملاتړي ادیبان او لیکوالان ورته دغرب دبې مهاره مفکرینو او لیکوالانو ترجمانان ښکاري. یرغلګر او استعماري هیوادونه هر وخت تر خپل پوځي یرغل دمخه دادیبانو ، مفکرینو ، او تعلیم له لارې فکري یرغل کوي چې همدا تجربه په اسلامی نړۍ کې په پرله پسې ډول تکراریږي. په تیره زموږپه هیوادکي یې عیني اوژوندۍ بېلګې دشوري اوامریکایرغلونه دي ،دکمونیزم لارویانولومړۍ خپل ادبیات راانقل کړل او وروسته بیا روسانو پوځي یرغل وکړ. وروسته بیا غرب ځپلودلویدیځ شړیدلي فکري ادبیات راوژباړل اوبیا ټول غرب پر افغانستان پوځي یرغل وکړ.

استاد شپونکی دروان جهادي او اسلامي بهیر له ادیبانو ، شاعرانو ، لیکوالو ، او ویناوالو له (سطحي توب) شخه ګیله لري ،ځکه همدا عمده علت بولي چې خپل ولس ته په سمه توګه خپل افکار او نظریات نه شي رسولای او هر وخت ورڅخه د ولس یوه لویه برخه ځوانان او نوی نسل پردیو په خپل ځان پسې روان کړي او په خپلو افکارو او نظریاتو



قانع کړي وي. استاد دهمدې ستونزې حل په ګوته کوي او وايې چې:« مسلمان ليکوالان شاعران او دعات ځان بايد په خپل دين ښه پوه کړي ، او بيا د خپل دين په رڼا کې پراخه (نړۍ ليد ) حاصل کړي ، د پيښو ژوره او پراخه مطالعه وکړي او په رڼا کې يې داسې ليکنې وکړي چې په خپل حقانيت ، موزونيت ، او واقعيت خلکو ته قناعت ورکړای شي.

ارمان يې دی چې کاشکې په اسلامي مدارسو کې د شرعي او لغوي علومو تر څنګ دليکوالۍ او معاصرو ادبياتو مضامين هم تدريس شي ،تر څو زموږ په ديني علماؤ کې چې د ټولنې لارښوونکي دي په مطلوب ډول د ټولنې د مخاطبولو وړتيا پيدا شي، او د شفاهي وعظ تر څنګ په ليکلي ډول هم خلکو ته د اسلام پيغام ورسولی شي.

ښاغلی شپونکی د معاصر اسلامي ويښتابه د سرخيلانو ، په خاص ډول د (في ظلال ) د خاوند استاذ محمد قطب، علامه ابو الحسن علي ندوي، ابو محمد المقدسي، علامه احمد شاکر، محب الدين الخطيب، عبد الله عزام او..... ليکنې ډير خوند ورکوي او په فکري لحاظ ترې متأثردی .دغه راز د ادب په ډګر کې يې د استاذ الفت، علي طنطاوي، اقبال، نجيب کيلاني، مصطفی صادق الرافعي، نسيم حجازي او ..... ليکنې ډيرې خوښيږي .له بې دينه غرب پلوو اديبانو او بې هدفه شاعرانو يې ډير بد راځي .هغه خلک يې ډير خوښيږي چې په رښتيا خپلې ژبې ته خدمت کوي.خو هغه چې د خدمت په بهانه د مسلمانانو ژبو او فرهنګ ته د کفارو ديني، فکري، اخلاقي ،سياسي او نور منفي تاثيرات رانقلوي هغوئ ورته د ژبې خادمان نه بلکي د مسلمانانو دښمنان ښکاري.

په نظم او نثر ليکلو يې د هجرت په ديارکې پيل کړی چې تردې د مه يې د جهادي ادب لمن تـه پـه سلهاوو منثوري او منظومي پاڼي ډالۍ کړې دي ، په پنځو ژبو: پښتو ،فارسی، عربي، اردو ، او انګليسي ژبو لوست ،تدريس او ليک کولای شي . هغوی ته چې د ښکلا انځوروني او هنرپنځوني په پلمه هغه توکي کاروي چې په عاميانه ژبه کي مردود وي د ادبي ليکنو په ټولو صنفونو او ژانرونو کي ترې د ځان ساتني سپارښتنه کوي. ځکه چې ادب ناروا وينا ته جوازنه شي ورکولای او مهمه لا دا چې الله تعالی له انسان سره د هغه د هر- هرحرف محاسبه کوي.

## پیغور

دمیرویس اولاد ته ګورئ ! !
دګورګین لښکر کې ځغلي
آزاد ي مې وژني ، وژني
د پردي کافر په توره

* * *

انګریز بیا په خپل لښکر کې
دا حمد له کند هاره
دا د ی بل شاشجاع راووست
د صلیب تر سیوري لاندې

* * *

د ( آدم ) دتور غره خواکې
د (برایدن ) پر زړه لاره
دا دی بیا لښکرې درومي
خو مخ پورته ، نه مخ کښته
(مکناټن ) یې دی په مخکې
له اکبره کسات اخلي
خو دا ځل د ( لارې خلک )
هم له د وئ سره روان دي

* * *

د ببرک ورونو ته ګورئ ! !
بیا یې سرې ماڼۍ ته مخ کړ

د لیـــــنن پـــر قبـــــــر ژاړی
کـــه قبـــول یـــې شـــي ســـوالونه

* * *

ثـــه ببــــر ببـــر ( شـــیخان ) ول
ورنـــه هېـــره یـــې شـــیخي شـــوه
د محـــراب پـــر ځـــای اوس ګـــورئ
میخانـــــه کـــې کـــړي نفلونـــــه
د کعبـــــې پـــــر ځـــــای روان دي
اوس د ســــــپینې مـــانۍ خواتـــــه
چـــې یـــو ثـــه شـــکر ادا کـــړي
دفرعـــون ناپـــاک حـــرم کـــې

* * *

د ســـپین غـــره ســـپینه لمـــن چـــې
د (حجـــاز ) لـــه پـــاکو وینـــو
ســـره رنګینـــه شـــوه ، الـــوان شـــوه
ســـره لالـــه بـــه پـــرې راشـــنه شـــي
چـــې دا (تـــور داغونـــه ) پـــټ کـــړي
لـــه تنـــدي د (تـــورې بـــوړې )
ګونـــدې خـــلاص شـــو لـــه پیغـــوره
د (پرد بســـــو ) ارواګـــــانو

* * *

/ ۲ / ۱۳۸۲ هـ ش

# سپین غازي

پرون زما د سپین غازي له توري
دلته یې سرې لښکرې ویلې کړلې
هلته یې څوکې دقوقاز رنړا کړې
کلیسا بیا دخطر زنګ وواهه

نن بیا زما د سپین غازی له توري
دمات صلیب ویر ته راټول دي واړه
لکه چې بیا دکوم مؤمن له تنه
یواځې سپینه مانۍ نده په ویر

زما د سپین غازي له سپین میونده
بیرغ یې ځوړند دی بیا ویر خپور شوی
وایې د سپین غازي د سپینې فتحې
نه ګورئ ! هر چیرې په هر پړاو کې

خود غازي یو څو تورمخي وروڼه
پر جهادونو پښیمانه ښکاري
چا برالا ځان په ډالرو خرڅ کړ
له سپین غازي سره پر سمه نه ځي

زما د سپین غازي په سپین زړګي کې
هلته وجدان او عاطفه هستېږي
ددي دنیا د هر مظلوم لپاره
خو دنړۍ دهر فرعون په خلاف

زما د سپین غازي د سپینې پګړۍ
لکه سپین تاج د سیادت نښه ده
د مسلمانو ولسونو په نوم
هم ورکې ډیر مې له غازیانو پاتې

زما به سپین غازي په سپین لښکر کې
سپینه شمله او سپین بیرغ دواړه
بیا به د سپین غازي دعدل سپین لمر
( شپونکی ) به بیا د لوړو غور له څوکو

دسترجهاد یوه بریښنا پورته شوه
بله لمبه یې په چیچنیا پورته شوه
له اروپا ورته بوسنیا پورته شوه
چې د تکبیر چیغه زما پورته شوه

سپینې مانۍ کې یو ماتم جوړ دی
بیا د شین سترګو کور کې غم جوړ دی
ورته کوم بل انساني بم جوړ دی
په اروپا کې داو یر هم جوړ دی

سپینې مانۍ کې انګازې جوړې دي
لکه چې بیا څو جنازې جوړې دي
د راتلو لویې اوازې جوړې دي
یې استقبال ته دروازې جوړې دي

بیا مات دښمن ته په ګونډو ورغلل
له جنګ او ننګ نه په توبو ورغلل
څوک بیا په نورو بهانو ورغلل
خو تور دښمن ته پر کړو ورغلل

د انسانیت دامیدونو کور دی
د لوړو لوړو ارمانونو کور دی
د مینې مینې او ګلونو کور دی
دلوي کرکې نفرتونو کور دی

په هرهر وله کې پیغامونه نغښتي
ورکې شرف او عزتونه نغښتي
دآزادۍ ستر انعامونه نغښتي
دتاریخونو ګران یادونه نغښتي

دخپل ارمان منزل ته ورسیږي
بیا د کابل پر غرونو وریږي
د تورتمونو پر کور وځلیږي
په لوړ آواز نړۍ ته وغریږي

## د ژوند کتاب

راشه ووایه له ما د ژوند کتاب
چې دې پوه کړم په هر فصل په هر باب
ما د ژوند لارې دې ډېرې لټولې
را معلوم د ډېرو ستونزو دي اسباب
دا دزړه غربېږي د زړه په غوږو واوره
ګوندې زما ددې سفر شې همرکاب
ملتونه څنګه جوړ شي څنګه ورک شي
جوړ له توري شي او ورک شي له رباب
چې فرهنګ د انقلاب یې پوهه نه وي
هغوئ وبايلي ګټلى انقلاب
چې اوبه نشې هدف به خړوب نه کړي
چا ليدلي څوک سيراب دي له سراب
که په زړه کې دې اورنه وي رڼا نه کړي
ژوند رڼا دزړه له اوره کړ آفتاب
د ژوندون د مسافرو لار رڼا کړي
چې شوګير کړي ټوله شپه لکه مهتاب
د اومې غوښې شي هلته قيمت پورته
چې سوری شي پر زړګې په اور کباب
د سيلاب مخنيوی هغه وخت ممکن وي
چې لا مست او طوفاني نه وي سيلاب
اداره د ملتونو په حکمت شي
زور چاره ، جوړ له حاکمه کړي قصاب
دوست هغه دی چې په سخته ورځ په کار شي

د نعمـــت احبـــاب دې مــــه بولــــه احبـــاب
دمـاهي ژونـد تـه خطـر پـه مـوج کـې نشـته
مــړ هغــه شــي چــې راوځــي لــه دريــاب
تــر آخــره يــې ديــوال کــوږ پورتــه کيــږي
کــه يــې کــوږ ورتــه پيــل کــړی وي تهــداب
کــه د چــا دزړګـې کـور کـې مسـکن غـواړې
د زړګــــې کــــورګی دچـــا مــــه کــــړه خــــراب
اعتـدال د ژونـد پـه هـر څـه کـې عـادت کـړه
ځــان بلــد کــړه پــه حســاب پــه احتســاب
کــړه هغــه چــې آخــرت دې پــرې رغيــږي
خيـر کـه ژونـد دې د دنيـا شـو ټـول عـذاب
د پــــوهنې ډيــــوه کــــور کــــې بلــــه ســــاته
غـم يـې مـه کـړه کـه دې کـور وي پـه سـرداب
خپــل اولاد تــــه دتورزنــــو کــــړه نکلونــــه
دغازيــــــانو ، فاتحــــــانو ، داصــــــحاب
دوروری لپـــاره تيـــر ترحســـاب مـــه شـــه
هــم وروري هــم مــروت کــړه هــم حســاب
انســـان جـــوړ لـــه روح او تـــن دی دواړه پالـــه
روح قربـان نـه کـړې د تـن لـه آب و تـاب
چــا ويــل چــې مينــه ټولــه شــنه خنــدا وي
مينـــه نـــوم دی دنـــازونو او عتـــاب
د ( شــپونکي ) دغــه ســاده خبــرې ګــوره
همدغــــه دي دحکمـــــت لــــب لبــــاب

# شریف الله نیکمل

شریف الله نیکمل درویشت کاله وړاندې (۱۳۶۸ل، ) د هجرت په دیار کې د حاجي ګل اغا په کورکې فاني نړۍ ته سترګې پرانستلې دی. اصلي وطن یې د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ اړوند دبربیار سیمه ده. خوله ډېرې مودې راهیسې دخیبرپښتونخوا ایالت په کوهاټ کې له خپلې کورنۍ سره اوسي. لومړنۍ او منځنۍ زده کړې یې ترسره کړې دي، دقران عظیم الشان دحفظ ویاړ یې ترلاسه کړی دی او اوس ددیني علومو او اجتماعي فنونو د مروج نصاب (درس نظامي ) په ویلو بوخت دی او د تکمیل پړاو نه یې رالنډوي .

.نیکمل په ژبه او قلم د باطل پرضد سپېڅلې مبارزه کوي، دحق سپاهیان ستایي او پرې ویاړي، دکونډو، یتیمانو او زندانیانو اهونه او فریادونه ترولسونو رسوي. مکارخونامراد غلیم او هغوی ته چې د ښکېلاک پرضد پاڅون بې مفهومه او بې ګټې جګړه نوموي، د پرمختګ خنډ او دوروسته پاته والي عمده عامل یې ګڼي رسوا او یې چې:

جګړه زمونږ د کلي هم سپیڅلې عبادت دی
ور وځو ځکه لارو د دښمن ته په سیالۍ
چې دار ته وي ورکړي د خپل عشق عقیدې
ګلونه یې وړو نیکمله خړ مدفن ته په سیالۍ

ښاغلی نیکمل نسبتا لږوخت کیږي چې شعر لیکي، خو ډېري ترانې او غزلې یې لیکلي دي او دا یې هم د پنځونو بېلګې:



## څــــوک ؟

څــــوک دشـــــفق ترشــــابدرنګه مابښـــامونه وژنـــــي
څــــوک دســـهار ترســـپين افـــق لانـــدې لمرونـــه وژنـــي
څــــوک پـــــه لوګيــــو پلوشـــــې دماز ديګربـــــدلوي
څــــوک دهـــلال غونـــدې ســـرې دې تور تمونـــه وژنـــي
چادغمازلـــــه وېـــــرې وويســـــته توبـــه لــــه مينــــې
څــوک هــم پــه مينــه رقيــب وژنـــي هــم ځانونــه وژنـــي
وايــــه صـــــفادزړه خبـــــرې پـــــه زړه ولـــــې ســــاتې
دابهـــــانې دې يـــــاري وژنـــــي ديدنونـــــه وژنـــــي
چامســــــافرو ســــــره خپلـــه ورانــــه خونـــه پرېښـــوه
څــوک بـــې احساســـه لاتراوســـه خپـــل قومونـــه وژنـــي
څــوک مــو لـــه تــور زندانـــه وړي تيـــي تيـــي تـــرداره
څــــوک دې درمـــل لــــه پرهرونومـــــو دردونـــه وژنـــي
خاونــــده تـــــه پـــــه هغـــو خلکـــو ځمکـــه وزنګـــوې
څــوک چــــې دخـــوارو افغانـــانو ارمانونـــه وژنـــي
نيکملـــه څــوک حقــې ويـنـــاوې زړوتــــه نــــه کـــوزوي
ســـم ليـــوني دې جهـــاد وژنـــي ســـنګرونه وژنـــي

## شهــــــادتـــه

پرهرپرهرچـــې غبـــړه کـــې درړنـــګ وي شــــهادته
نيــولي دې ســـلګو کـــې لـــړ ترڅنـــګ وي شـــهادته
دژوندوروستوشـــيبوکې مـــې چـــې نـــوم ديارپـــه خولـــه وي
بـــل داچـــې ســـم پــــه ســـروينو کـــې رنـــګ وي شـــهادته
خمـــار خماربـــه ومـــه وران زړګـــي بـــه مـــې راتـــول وي
راکــــړي دې ښــــه ډک جامونـــه بنـــګ وي شــــهادته
ســـپرلي ســـپرلي لمـــن نـــه دې واى ويشـــتي پـــه غـــاټولو
درغلـــي چـــې پـــه مخـــه زه ملنـــګ وي شـــهادته
ټوټـــه ټوټـــه دې کــړي وي بيـــاهم درتـــه موســـکي وي
چـــې کـــړي مـــو دمينـــې داســـې جنـــګ وي شـــهادته
دغــــره يومسافرشـــهيدواى پـــروت وي پـــه کمـــرو
نيکمـــل چـــې درنســـکور لـــه کـــوم ګرنـــګ وي شـــهادته

## شفیق الله مشفق

### دپردوسرنوشت

نشــته ټانــګ نــه بــې پیلوټــه الوتکــه
بیــا مــو هــم ده لــه دښــمن نــه لاره ورکــه

د راکــټ درنــې مرمــۍ مــوږ پــه اوږو وړو
نــه مــوټر نــه کــانټینر شــته نــه چورلکــه

هــومره زر بــه یرغلګــر پــه ګونــډو کیــږي
ځــومره وي چــې اراده زمــونږه کلکــه

ډیــر زیــات زړونــه ورتــه ډک دي لــه غصــې نــه
اوبامــا بــه هــم پــه ســر وخــوري څپلکــه

ولسمشــره تــه غــلام یــې تــه غــلام یــې
واک دبــل دی تــه بــس یــې لکــه نانځکــه

دپردیــو سرنوشــت دلتــه معلــوم دی
څوک شي مړه څوک ګوډ او مات څوک نادرکه

اې مشــفقه شــهادت راباندې ګــران دی
لــه ځــانونو تــاوو بمونــه ځکــه

# ضیاء الحق حبیبي

## مغرور لښکر

ګیر لـه هـرې خوانـه دنـړۍ یـاغي اورپـکې دي
تښـتي بـه پـه کومـه ده وتـولارې تـرې ورکـې دي

هغـه زورورهغـه مغروراوکبـرجن لښـکر
مات شوپه ګونډوشولواولاهم زاره ترکـې دي

هغـه پـرمخ تللي وسـا یـل یې بې معنی دي هـم
ښکاري چې ناکام یې بې پیلوټه هم چـورلکې دي

داوطـن شـخ بریتـی اوباتوربـاتور زلمـي لـري
ځکـه دپردیولـه دې خـاورې نـه پښې سپـکې دي

دلته په دې غـروکې دشاهین دحملو ښکاردي نن
ویسـتې یـې لـه دې توروکارغانونـه بڼکـې دي

ښکاری چې په زغـرو اوبمونوطیارو نه شو لــه
ځکـه یـې دسولـې هلـی ځلـې نـن چټکـې دي

دلته کوم پــــردي چې «حبیبي» په زورراغلي دي
غرونـه اودرې یـې پـه ککروبانـدې ډکـې دي



زه دهغـــه اکبرخـــــان تـــوره اوډال یـــــم
نړیوالویرغلګروتــــــــه زوال یـــــــم

دعمرهســـکه شـــمله ســپینه پـــګړۍ یــم
دمیونـــــد دمیـــدانونوملالۍ یـــــم
ننګیـــالی یــم غرنـــی یــم غرڅـــنی یــم
پیژنـــــدلی تـــــاریخونودنړی یـــــم

ورتمونووحشــــتونوته مشــــال یـــــم
نړیوالویرغلګروتــــــــه زوال یـــــــم

لکــه غشـــی تیزلــه تــوری اونیـــزی ځـــم
خپـل هـدف تـه مخکـی وړانـدی ترحملـی ځـم
اباسـین یمـه فـرات څپـی څپـی ځـــم
پـــه ورو ورو بـــه دخیـــبر تـــر دروازی ځـم

ددی عصــــرمجاهد غـــازی ابـــدال یـــــم
نړیوالویرغلګروتــــــــه زوال یـــــــم

دپامیراوهنـــدوکوش دڅوکـــو بـــــاز یـــم
راوتلـــی انقــلاب تــه پــه نازنـــاز یـــم
یـــوه چیغـــه دتکبیــــر اویوآوازیــــم
دجهـــاد ده ولولوســـتړی آغـــاز یـــم

تاریکیوتــه ســپین څــرک یمــه هــلال یــــم
نړیوالویرغلګروتــــــــه زوال یـــــــم

مـــاتی کــړی مـــی بـــی شـــمیره میـــــکدې دی
مــــــامنلی زندانونــــــه غــــــرغرې دی
ابـــراهیم غونـــدی زغملـــې مـــې لمبـــې دی
(حبیبـــی) لامـــې ژونـــدی هغـــه جذبـــې دی

زه ده ګـــران محمـــد عمرد څنـــګ بـــلال یـــم
نړیوالویرغلګروتـــــــه زوال یـــــــم

## (مجاهدورورته)

ســـتونزې تکلیفونـــه زحمتونـــه دي تبـــاه نشـــي
پـــام کـــوه ســـپیڅلی امیدونـــه دي تبـــاه نشـــي

دلتـــه رقیبـــان لـــرې اوهلتـــه رقیبـــان لـــرې
فکرکـــوه هغـــه تدبیرونـــه دي تبـــاه نشـــي

څـوک درتـه خـوږې وایـی اوڅـوک درتـه ترخې وایـی
ځیراوســه ټـول کـړي جهادونـه دي تبـاه نشـي

لاره ده معلومـــه پـــه همـــدې لاره ســـیده درومـــه
هـــا ددیـــن پـــه لاره کـــې مزلونـــه دي تبـــا نشـــي

مینـــه محبـــت دیووحـــدت پـــه زړه کـــې ولـــره
خیـال کـوه پـاک نیـت اوپـټ رازونـه دي تباه نشي

څارشـه "حبیبـی" چـې پـه نـازونویی رالـوی کړلـې
هغـــه کړیـــدلي ولســـونه دي تبـــاه نشـــي

# عباسي خدرخېل

هدايت الله (عباسي خدرخېل) د مولوي حبيب الله صاحب زوی ، اصلي مېنه يې د ننګرهار ولايت د جلال اباد ښار دی. د ۱۳۶۵ل، کال د کب پر ۱۲ مه نېټه پېښور کي د افغان مهاجرو د جلوزو په کمپ کي زوکړی دی. په دولس کلنۍ کي يې د ستر ښتن جل جلاله د معجز کلام (قران کريم) د حفظ د فضيلت تاج پر سر کړی دی .وروسته د معاشرتي او کورنيو ستونزو له امله زده کړي ترې پاته شوي دي ،خود ۱۳۸۲ل، کال راهيسي يې بيا په ديني زدکړو پيل کړی او اوس د ديني علومو د تکميل په وروستي پړاو کي دی.

عباسي خدرخېل د زړه سوانده زړه ،تاوده احساس او پاک ضمير ښتن ځوان دی. د خپلو اسلافو پر کارنامو وياړي ،يرغلګرانو ته په دې خاوره کي د نورونيوا کګرو ماتي زامي او کوکي وريادوي ،د خپل پلار نيکه ميړاني او د تورو شهکارونه يې انځوروي .هغوی ته چي د خومادي ګټو په خاطر يې خپله خاوره ،تاريخ ،هويت ،خپلواکي ،استقلال او ارزښتونه و پلورل پيغور ورکوي او د همدې کرغېړن عمل عکس العمل ته يې متوجيه کوي. ښاغلي خدرخېل له ماشومتوبه د شعرو شاعرۍ سره توده مينه لرلې ،له اتو کلونو راهيسي خپله هم احساس ،فکر او عاطفې ته د شعر لطيفي جامې سکښي .د دوو ټولګو څخه زيات شعرونه او ترانې يې زيرمه کړي ،خو تر د مګړيه يې کوم اثر د چاپ په ګېڼه نه دی پسولل شوی . ترانې يې زيا تو ترانه ويونکو په تېره حافظ محمد امين حيدري زمزمه کړي دي. دا هم د ښاغلي خدرخېل عباسي د کلام نمونې .





# زماګوزار

تــاریخ دی دجهــاد ورکــړی بــاب زمــاګوزار تــه
ډیرلــوی ثــواب لــري ویــل ثــواب زمــاګوزار تــه

دلمرپـــه مقابـــل کـــي سپینوســـتورو ســـرخوړلی
نوتــورې شــپې بــه ځنګــه راوړي تــاب زماګوزارتــه

زماپـــه دې بهیرکـــي دمهـــدي تکبیراثـــر دی
ایــره شــي اوبیکــاره شــي اســباب زماګوزارتــه

پروانشــته دنیــل پــه غــاړه ښــه پــه مســتۍ ګرځــه
فرعونــه خوبیاتېنــګ شــه پــه ګــرداب زمــاګوزار تــه

پــه خــوا مــي پــه خپــل ورور رحــم راتلــو نــه مــې وهلــو
خوخپــل اوپــردي یــوکړل انقــلاب زمــاګوزار تــه

هرځلــې چــې دي خــاورې تــه راځــي مغرورځواکونــه
فــولادوي کلــک لــه غرونــو ،شــي تــراب زمــاګوزار تــه

اوس ګــوره عباســي دتــور ښــامارداړې شــوې مــاتې
عــذاب شــوپه جنــاب نــه شــي ځــوا ب زماګوزارتــه

# دمينې دنيا

څوک مې ګناه بولي وفا دمينې
چامې تورن کړو تور بورا دمينې

څوک مې خپل وروررا ته دښمن جوړوي
چامې زړه توری کړو اشنا د مينې

څوک مې دزړه کعبه په کاڼوولي
چامې اشغال کړله اقصی دمينې

څوک مې مجنون په بيابانونه پريږدي
چامي سرتوره کړه ليلا دمينې

څوک مې ژړاباندې خپل زړه يخوي
چامي وژلې ده خندا مينې

څوک مې په زړه باندې چړې راکاږي
چامې ويستلې رانه ساه دمينې

څوک مې له سرې سپينې ماښې ځاروي
چامي پلورلې اريانادمينې

څوک زلمي دمنيې ګورته ليږي
چامي جوګه کړلو بوډادمينې

عباسي پرې مې ږده چې ښه وژاړم
چامي راړنګه کړه دنيا دمينې

# عتيق الله عزيزي

عتيق الله عزيزي دمرحوم صوفي عزيزالله زوي، په ختنه مومند حسن خېل ، له نن څخه درې ديرش کاله وړاندي (۱۳۵۸ل، )يې دلوګرولايت دمرکز(پل علم )په پادخواب شانه کلي کې فاني نړۍ ته سترګې غړولي دي.

لومړنۍ زدکړې يې دخيبرپښتونخوا ايالت په هنګوضلع کي دافغان مهاجرينود کهي پنډغالي نعمانيه اسلاميه مدرسې کي سرته رسولي ، منځنۍ زدکړې دميرانشاپه بحرالعلوم ، دکاهي په سراج الاسلام ، اودلوګردارالعلوم اسلاميه نعمانيه کې ترلاسه کړي دي ،اولوړي زده کړې يې دپيښورحيات اباد په دارالفرقان مدرسه کي دحديثو داستاد شيخ الحديث والقران مولانا امان الله څخه ترلاسه کړي او دپګړۍ تړلووياړيې په برخه شوی دی.

عزيـــزي صـــاحب د اســـلامي امـــارت پـــه وخـــت کـــي لـــومړي دلوګرولايـــت اوبيادننګرهارولايت داطلاعاتواوکلتوردرئيس په حيث پاته شوی دی .داسلامي امارت له سقوط وروسته دهغولومړنيوکسانوڅخه وو چي پـه ژبـه اوقلم يې داسلامي شعايرواوملي ارزښتونوڅخه ددفاع په موخه دښکېلاک پرضد مبارزه پيل کړه اوپه لنډه موده کي يې ددښمن پـه وړانـدي فرهنګـي اوروانـي (نفسـياتي )مورچل ګرم کړ،بيلابيلورځپاڼواومجلوتـه يـې مضامين ليکل اوخپله يې هم ديوې اونيزي اومياشتنۍ دمسؤل مديراوچلونکي پـه توګـه نـه هيردونکـي فرهنګـي خدمتونـه کـړي دي.نومـوړی اوس هـم ديومسـتعدليکوال پـه توګـه پرروانوحالاتوليکني کوي اوپه مختلفوويبپاڼواومجلوکي خپريږي.

عزيزي دژوري مطالعي ،ښه استعداد ،کلک استدلال ،روڼ اند اوځليدونکي ټنډي ښتـن ځـوان دی ،مقالـه ليکـونکی ،کيسـه ليکـوال ،طنزاوشـاعردی ،پـه وينـايې چـي دشعراوشاعرۍ الهام اودليکوالۍ اسلوب يې دهيوادله منلي استادشاعراوليکوال فضل ولي ناګارڅخه اخيستی دی ، عقيدت اودرناوی ورتـه لري. دعبدالحي مطمئين اواستاد شپونکي ، شعريې دمګړۍ ډيرخوښيږي. اوداهم دنوموړي د شعرنمونې اوداثارونومونـه يـې چي تراوسه لادچاپ پـه ګېڼـه نـه دي پسولل شـوي: ولونـه (شـعري ټولګـه )، ګـل ځانګـه (دلنډوکيسو مجموعه ) طالبان په واکمنۍ کي ،(دمعلوماتوغونډ ).

# ګلاب

فطرتونه درته پړه ښکاري ګلابه
له رنګونو سره زړه ښکاري ګلابه

داسمان مرغان له پاسه سیورى راوړي
شبنمونه چې لامده ښکاري ګلابه

دحیالښکرې ستادرشل ته درومي
ننګیالي درمیلمانه ښکا ري ګلابه

دوفاناوکۍ پریږدي پیغلتوب کې
شهادت کې داخواږه ښکاري ګلابه

عقیدې تکنالوجي کړه راغورځاره
له بدریانو سره مله ښکاري ګلابه

که یې ټوله ځمکه سره کړه په ډالرو
طالب جان ته تش واښه ښکاري ګلابه

که هرڅومره سوله ساتى معرفي شي
زمونږ ددین سره ترخه ښکاري ګلابه

شپې یې لنډې ناټوځي دوارسالورته
عزیزي ، دغه راتله ښکاري ګلابه
۱۳۸۹

## مسافر شمله نلري

سـرې برېـوکی دی دليوانــو ، ولولــه نلــري
دانســانيت پرليکــه جــوړه ، فلســفه نلــري

چاتــه بشــر چاتــه حقــوق اوڅــوک پــه ترهــه زبيښــي
دابښــاماران دي ، هــيڅ قــانون تــه بروســه نلــري

دومــره هــوس ، هــومره لــذت لــه ملتونــو اخلي
پرتــه لــه زور او لــه تــذويره ، فيصــله نلــري

دمــدنيت ترنامــه لانــدې لادينيــت خــوروي
دا ، پــت زبيښــونکي بلــه هيلــه سلســله نلــري

دشــاروني تســکين لپــاره بغدادونــه نيســي
همــدوی دتيلــو ســارقين کومــه پلمــه نلــري

دغــه ټــاټوبی دابــدال اوســترمحمود غزنوي
طاغوتــان تــل همدلتــه پــرزي ،حوصــله نلــري

افغــان ولســه پــام چــې غيــږ دخواخــوږی ورنکــړي
څــوک يــې چــې پــالي دي ذليــل اوهــم شــمله نلــري

دفتحــې زيــری دحجــري غــازي مورچــل نــه راووړ
عزيــزي ، دې ســنګر تــه څــوک وســله نلــري
۱۳۸۲-۲-۲۱

# عبدالاحد حماد

عبدالاحد حماد د مرحوم عبدالقادر زوي ، په ۱۳۵۸ل، کال کي دجوزجان ولایت دمردیان ولسوالۍ دخانارغ په کلي کي نړۍ ته سترګي غړولي دي. دشوروي تاړاک وروسته یې کورنۍ دجنوبي وزیرستان وانه ته هجرت کړی دی ،لومړنۍ زده کړې یې هورې دامام ابوحنیفه په مدرسه کي کړې دي. وروسته دبلوچستان ایالت مرکز کوټې ته کوچیدلي او دااقتصادي ستونزوله امله یې دزده کړو لړۍ تم شوې ده ،خو ترلږځنډوروسته یې بیرته زده کړو ته دوام ورکړی او په مختلفو مدرسو کي یې دمروج دیني تعلیمي نصاب فنون لوستلی دی.وړه دوره یې په ۱۳۸۰ل، کال دپیښورچارسدې کي دمولانا محمدادریس سره کړې ده ، پرافغانستان دامریکایرغل یې بیادزده کړو مخه ډب کړې اوترهغوېې په جهادي مورچلونوکي برخه اخیسته ترڅوچي دهیوادپه مختلفو سیموکي دمجاهدینو تحرکات زیات شول اوزمینه مساعده شوه چي ځیني مجاهدین څه وخت درس ووایې اوڅه وخت بیادجهادصفونوته ولاړشي. دتفسیراواحادیثو(لویه) دوره یې دمولانا سعدالله کاکړسنزرخېل سره لوستې ده.

حماد اوس مدرس عالم دی اووروسره په څنګ کي اسلامي اوملي فرهنګ ته چوپړ هم کوي ،نوموړی که دګودرغاړه ،منګي اوبنګړي یادوي نودکارتوسوکړسهار،دتوري خرپهار ،ددښمن دتیښتي ترپهاراودمورچل ګرداوغبار هم ستایي ،لنډداچي که منطقي ملادی نوزهدهم کوي ،که صوفي دي نودجهاددتودوسړوسره هم اشنادی ،که شاعردی نوله تدریسه هم ځان نه سپموي.له وخته دشعروشاعرۍ سره مینه لري ،اوشعرونه لیکي ځیني ترانې اوغزلونه یې دترنم بلبلانوزمزمه کړي هم دي.



په سرېوکي سرې درپسي مات شول
ازادۍ چینارزلمي درپسي مات شول

خبرنه یم چي لاولي موسکۍ نه شوې
غوټۍ هیلي مست سپرلي درپسي مات شول

چېرته یې دزولنوسندریزکیفه !
دپیغلوټومو بنګړي درپسي مات شول

ښکاري بیایې بدرګه کړې دحق کړیکي
ددرست کلي لیوني درپسي مات شول

حسنه اوس به دي په قدرجانان پوه شي
چي داوښکوسپین غمي درپسي مات شول

لادي څومره پوروړي یونورعشقه
هم سرونه هم زړګي درپسي مات شول

سجدوبیابه نورساترعرشه دروم ځ
که موداياغي تندي درپسي مات شول





چيرتــــه پـــټ يا ســـت مرورو پســــرليو
تنکــۍ ځــانگي اونيــالگي درپســي مــات شــول

ځــومره ښــه ښــکاري ټوپــک اوگردنيــه !
پــه لونگوجوړځونــډي درپســي مــات شــول

ږدي دي حــوري پــه پيکــي زخمــي گلابــه
دپرهــرددردمن ځگيــروی درپســي مــات شــول

چاشـــــهيدکړي ای دبرگودرچينــــــاره !
هســکي غــاړي اومنگــي درپســي مــات شــول

ددې کلــي واړه ســپي ليــوني شــوي
پــام طالبــه اربکــي درپســي مــات شــول

دنظرپروانورمــــه ســــاته جانانــــه
پــه صــحراکي ســپيلني درپســي مــات شــول

پــرون نــه وې دحمــادرنگين غزلــه
هــم شــپېلۍ اوهــم شــپونکي درپســي مــات شــول



## جنګ به درته راوړم

پرلوڅه شادآس ګټلی جنګ به درته راوړم
پرزلفوبه دي وشیندم لونګ به درت راوړم

په تارکي درباب به دلاهوت سندره سره کړم
له زړونه چي زنګ اخلي هغه شرنګ به درته راوړم

له خضره سره لاس لرمه ستوري به راکوزکړمه
بلقیس به درته راولم پالنګ به درته راوړم

نوکي دقلم ته مي بلبل مشوکه راکړه
له فارس نه په نازجوړنازک فرهنګ به درته راوړم

خماربه دي پرې مات کړم اوخودي به درنه واخلم
دعشق له میخانې نه لپې بنګ به درته راوړم

زړګی به دي تالاکړم په غمزودچټوسترګو
دسروشونډوشپیلکی دخطرزنګ به درته راوړم

په عزم دطالب مي دی قسم دباباتوري !
چي مات پرې سومنات شي هغه ننګ به درته راوړم

دحق په مینه مست چي ووجوړکړی له زګیرویو
له ډاره وید وزړونوآاهنګ به درته راوړم

پادشاه دشاپیریوراته ویل حماده واوره !
چي کوم یورنګ دي خوښ وي هغه رنګ به درته راوړم

## شهیدګودر

زخمي زخمي نتکی وې د شهید ګودر له غاړې
شیندلي غاړګی وې د شهید ګودر له غاړې
سلګی وې د بلبلو د چنار په ماته څانګه
شهیدي شاپیری وې د شهید ګودر له غاړې
مرغانویې وړل ترعرش په وزرونوکي آهونه
معصومي جینکی وې د شهید ګودر له غاړې
د سره بارخوله پاسه غټي غټي رونې اوښکې
په ګلوکي ژلی وې د شهید ګودر له غاړې
داورپه ژبه ګډووغرغړې وې د توپونو
ګونګي مستي شپېلی وې د شهید ګودر له غاړې
ورا ،وه د دیوانو بد رنګي یې نځوله
حاکمي ترورمی وې د شهید ګودر له غاړې
پیغامبری ضمانت کړی هوسی په منډه راغلې
نهاري څوکبلی وې د شهید ګودر له غاړې
په پلوکي یې راخیستی د شهیدي ناوي هارو
ناري دیوې مورکی وې د شهید ګودر له غاړې
منګیه چې په نازنازبه له تا سره کړه شوه
د هغې پیغلې سلګی وې د شهید ګودر له غاړې
د جنت وریښمینه لاره وه د سرولمبو په غیږکې
رواني پرې سپورمی وې د شهید ګودر له غاړې
حماد لکه شفق له غمه سره لمبه کوله
مروري خوشحالی وې د شهید ګودر له غاړې

# عبدالبصیر عبرت

شهيد حافظ عبدالبصيرعبرت داروانښاد عبدالحميد زوي ،په ۱۳۵۲ل، کال کي زيږيدلی دی. پلرنی ټاټوبی يې دميدان وردګ ولايت دسيدآبادولسوالي ده ،خووروسته يې کورنۍ دزابل ولايت دناوې ولسوالۍ په بلبلي کلي کي استوګنه غوره کړې ده. لومړنۍ زده کړي يې دبلوچستان ايالت په يوه افغان پنډغالي کي پيل کړي ،وروسته يې بيادهمدغه ايالت دمختلفوسيمو په بېلابيلومدرسوکي خپلو زدکړوته دوام ورکړی دمنځنۍ دورې ديني مروجه کتابونه يې لوستي دي اوديوه کال په اږدوکي يې دقرآن پاک حفظ سرته رسولی اودفراغت دوياړپګړۍ يې پرسرکړې ده .

په ۱۳۷۳ل ،کال چي په کندهارکي دظلم اوملوک الطوائفۍ پرضد دطالبانو اسلامي ملي پاڅون راوټوکيد عبرت صاحب ورسره ملګری شو ،د همدې اسلامي تحريک ديوهڅاند اوژمن غړي په توګه يې د ژبني- قلمي اووسلوال جهادپه بيلوبيلوډګرونوکي نه ستړي کيدونکي هلي ځلي ترسره کړي دي ، دفرهنګي هڅوپه لړکي يې په ۱۳۷۴او۱۳۷۵ل ،کلونوکي په کندهاراوهرات کي دپام وړمطبوعاتي اوادبي خدمتونه کړي دي .

شهيد عبرت پر۱۳۷۶ل ،کال په بادغيس کي دجنګ لومړۍ کرښې ته ولاړاوهورې يې داسلام اوهيواددښمنو ګيلم جمي مليشوسره دنښتي په پايله کي دشهادت جام پرسرواړاوه اوخپله ارواه يې ملک الموت ته وسپارله. اناالله واناالیه راجعون».

شهيد عبرت دسپېڅلي احساس ،عالي ارمان اولوړخيال خاوندخوش طبعه ځيرک ځوان ؤ ،دشهادت څخه شپږکاله مخکي يې په شعرليکلوپيل کړی ؤ ،نوموړي به په مدرسه اوحجره دفتراوسنګرکي له ډيرومصروفيتونوسره سره هم دشعرملکه يوازي نه پرېښودله ،دشعرپه مختلفوژانرونواوفورمونوکي يې داحساس ،عاطفې ،خيال اوفکرنيلی ځغلولی اوپه خپل وخت کي يې له ډيرولوبغاړوميدان ګټلی دی. ترشهادت وروسته يې دکندهارداطلاعاتواوکلتورریاست له خوادشعرونومجموعه «تانده سلګۍ» چاپ اوخپره شوه چي دمينه وال پام يې ځان ته واړاوه.





# تاوده شعرونه

قلمــه دا ســړې ســينې اورونــه رانــه غــواړي
دننــه پــه دوزخ کښــي خپــل کورونــه رانــه  غــواړي

پــه مفتــه بانــدي نــه ده نــاوکۍ دخپلواکيــو
دانــاوې پــه ټکــري کښــي ځوســرونه رانــه غــواړي

دادومــره وحشــي شــپه پــه يوځوســتورونه رونيــږي
خبراوســئ ملګروچــي لمرونــه رانــه غــــواړي

دمنــي پــه بادونوبــه هيڅکلــه زرغــون نشــي
داتخــم داميدخوبهارونــــه رانــــه  غــواړي

چــي ســريې پــه اړوبانــدي رانــه وور، ترموړپــوري
هغــه ،داتــل غــاړه اوس هــا رونــه رانــه غــواړي

ديارحســـن نهــال مــي پــه ځوځاځکونــه اوبيــږي
اى اوښــکوراوريږئ بهيرونــــه رانــــه  غــــواړي

تراوســه چــي يــخ پــروت دی پــه مغزودپرګنوکښــي
عبرتــه ! هااحســاس تــاوده شــعرونه رانــه  غــواړي

# روښانه بدلون

ښه ورته ځیرشه ای لیدونکې ړونده !
ددې زلمیانو تاند پاڅون وګوره
ای بې احساسه اوغټې سترګې بته !
ددې پېړۍ روښان بدلون وګوره

دمقدس لمرنه منکرشب پرک
هیڅوک ویاند دپلوشونه بولي
چي شي مجبورنو سترګي پټي نیسي
خوداسي څوک دخلاصیدونه بولي

ته دخیرنواوناپاکوهیلو
ورسیدلوته تېرخرڅوې
ته دتېپوس اودکارګه په بیه
دهندوکش دغرونه سرخرڅوې

خداارمان دي شنډشوی واوره !
ددې ملت زامن اوس ویښ دي رښتیا
دهرسرکښ پراورمیږتوره ایږدي
نه غلامان دي نه ویریږي له چا



د اننګيالي دي دهمت بچوني
ترستوني نيسي دوحشت ښاماران
دخپل هيوادپه زرغونه غېږه کي
زغملای نشي نورسورخولي ليوان

هدف ته خيژي دخپل سرپرزينو
ښکلی منزل تري هېريدلای نشي
دغه کاروان لکه طوفان د ی روان
داستاديوال يې مخ نيولای نشي

د سيلابونوغوندي سرله کاڼومه جنګوه
درياب، درياب شه چي سيلاب درته سجدې وکوي
الواک، الواک دهرواعظ وخولې ته مه ورګوره
توبه، توبه شه چي شراب درته لمبې وکوي

فلک که ډک کړل له اورونوجهانونه درته
ته سمندرشه په اورونوکښي ژوندون غوره کړه
عقل که راوړلې ستاپښوته زولنې په لاس کي
ته له دې عقله مرورشه اوجنون غوره کړه

[شهيدعبرت ،تانده سلګۍ مختلف مخونه]



# عبدالحنان همت

عبدالحنان همت ، پر ۱۳۵۳ لمریز کال دزابل ولایت دشاه جوي ولسوالي دپرلخیلو په کلي کي دمرحوم مولوي محمد ګلاب په دینداره او مجاهده کورنۍ کي دې فاني نړۍ ته سترګي پرانستلې . لومړنۍ دیني زده کړې یې له خپل پلار، او نوري زده کړې یې دهجرت په دیار (بلوچستان )کي په مختلفو مدارسو کي ترلاسه کړې.

په ۱۳۷۳ل، کال کي چي په ګران هیوادکي دشراوفساد پرضد دطالبانو اسلامي تحریک پیل شو، همت صاحب یې په هماغه لومړیو کي ملګري شو.کله چي تحریک دکندهارڅخه دپاټکسالارۍ تغرېتول کړاو ددغه ولایت دبیارغوني په لړکي یې اداري ،فرهنګي اوعمراني هڅي پیل کړې ،نوهمت صاحب دکندهار د اطلاعاتو اوکلتور ریاست کې په فرهنګي او قلمي جهاد بوخت شو اوپه دغه ریاست کي یې دکابل ترفتح پوري داسلام ،هیواداوخپلواکۍ په ننګه خدمت ترسره کړ.

دکابل ترنیول کیدووروسته نوموړي دهیواد ورځپاڼې مسول مدیر او دباختراژانس دلوي رئیس په توګه په دندوپاته شوی دی.

ښاغلي همت دزیات صمیمیت او عاطفې درلودونکی شخصیت دي ، همیشه دنوروپه درد دردیدلي،دنورو مجاهدینو او مخلصینو په څیر نوموړی هم دژوند ناخوالو ارام نه دي پریښی ،یو ځل ددښمن په لاس اسیر شوي او څه باندي اته میاشتې یې دتورو دروازو شاته په زندان کې تیرې کړي دي.



دايې هم دشعر نومونې :

## ګيله

نــه دي اوښــکې زمــا لــه اوښـکو سـره ملـې شـوې
نـــه دي بلـــې دوفـــا پـــه نـــوم ډېـــوې شـــوې

خيـــال مـــي داشـــي چـــې رقيـــب يـــې لمســـولی
چـــې منګـــولې دي زمـــا پـــه وينـــو ســـرې شـــوې

خيــر پــه ژونــد کــې کــه دي ويشــتی وم پــه کــاڼو
راشـــه نـــن مـــي پرمـــزار پورتـــه جنـــډې شـــوې

دا دعقــــــل زنځيرونــــــه مــــــو دړواخلــــــئ
دلتـــه مـــاتې پـــه لاســـوکې زولنـــې شـــوې

خـــدای خبـــر دي چـــې بـــه کومـــه مـــور شـــي بـــوره
راښـــکاره مـــو بيـــا پـــه کلـــي جنـــازې شـــوې

ډيـــري ســـترګې بـــه دې اوس لا هـــم لار څـــاري
ســـتا پرقبـــر خـــو جانانـــه ترخـــې شـــنې شـــوې

اســـــويلي دي ورتـــــه هـــــيڅ ښـــــکاري همتـــــه
ورتـــه زيـــاتې کـــه دې هرڅـــومره ګيلـــې شـــوې





# سورغر

درد د سرشـــــوې غلیمــــــانو تــــه ســـــورغره
دښـــــمنان دي پــــر زولـــــي لـــــر او بــــــره

عظمتونــــه دي پــــه هــــره لو ښـــــت کــــې ويــــنم
هــــر کـــږ لـــــېچ نــــه دي جــــوړ شــوی دی ســـنګره

هــــــر ګړنــــــګ دي دغـــــرور ســــــندرې وايـــــي
تــــــا وهلــــــې لـــــه پـــــا ميره ســــره ډغــــــره

تــــــه تــــــا ټوبی دزمريــــــانو وې لــــــه وختــــــه
هــــــر بچــــــی دي تيريـــــدونکی وو لـــــه ســــــره

ســـتا پــــه غېــږه کــې معصــومې وينــې تــوی شــوې
ځکــــه ښــــکارې هــــره تيــــږه ســــتا ګــــوهره

تــــا لــــه ځــــان ســــره ســــاتلې حماســــې دي
زمـــــا تاريخــــه زه دې لــــولم هــــر ســـــحره

تاپــــه هســـــکه غـــاړه نـــه دي رخصـــت کـــړي
هرخونخـــــوار چــــې پــــه کـــــړی دی ګـــــذره

زه همـــــت درتـــــه ږغيـــــږم تـــــه خـــــاموش يـــــې
نـــه پـــــوهيږم چــــې لـــــه چـــا يــــې مـــــره وره

پر ږبړده ماتې هتګړۍ شي
دافغان پر سپیره غولي
بیا دنوي ژوندون ساده
بوډاګانې هیلي پیغلي
هره مېنه په ګډا ده
++++++++++

بلبل نوی مالیار نوی
هرڅه نوي نوي ښکاري
ځمکه نوې اسمان نوی
وحشت دورمي جامې نغاړي
++++++++++

د سپین غره د شپون له خولې نه
دبدلون شپیلۍ غږیږي
د شمشاد پرهسکه څوکه
شاهین خاندي هوسیږي
++++++

شونډي بیا خندا ته جوړي
سیمې نوی رنګ راوړی
اطمنان ښکاري څیروکې
استبداد له منځه تللی
++++++++

چې پرې ولمبېده ځمکه
هغه ویني زرغونیږي
ترې راپورته به ګلان شي
غوټۍ پټې بیا تخنیږي
+++++++++

مر ور پسرلی پخلا شو
نور به شنه کړي ګلګخونه
مسافر بلبل به راشي
بیا به وایي اوازونه

لمر سپوږمۍ هم منتظر دي
کهکشان پټ پټ راګوري
ستوري کاندي سترګکونه
رحمتونه ترې را اوري

پر بېړده آه د مظلومانو
یو خل تندر د اسمان شي
د ظالم پر کور را پرېوزي
ورته بحر شي طوفان شي

پر بېړده ماتې هتکړۍ شي
چې محکوم انسان ازاد شي
اسارت کډه په شاکړي
زخمي زړونه چې پرې ښاد شي

پر بېړده وچې شونډې سرې شي
پر بېړده وخاندي ګلونه
پر بېړده ځیري ګریوان روغ شي
پر بېړده لنډ شي ترې لاسونه

پر بېړده بیا په الوتو شي
د همت د خیال کوترې
سوله تېنګه شي هیواد کې
پرې سوکاله شي وګړي

# عبدالديان تكل

عبد الديان تکل پر ۱۳۵۷ل، کال د الحاج مولوي غلام حبیب صاحب په علمي کورنۍ کې زیږېدلی دی. د غزني ولایت د ګیلان ولسوالۍ له رسنه نومي سیمې څخه هلمند ته تللي او له هغه ځای څخه یې بیا د بلوچستان ایالت پلازمېنې (کوټې) ته هجرت کړی دی. لومړنۍ زده کړې یې د هجرت په دیار کې د افغان مهاجرو په یوه عصري – دیني ښوونځي کې تر شپږم ټولګي پورې ترسره کړې دي او بیا یې په ځانګړې توګه دیني زده کړو ته مخه کړې مروج علوم او فنون یې په بیلا بیلو ښوونیزو مرکزونو کې د مختلفو استادانو څخه لوستلي دي او بالاخره د دستار فضیلت ویاړ یې ترلاسه کړی دی.

ښاغلی تکل د لوړ خیال، عاطفي، روڼ اند او ښو اخلاقو څښتن ځیرک ځوان دی، له ډېره وخته یې د شعر سره مینه پاللې تر دې چې نثریې پرې مرور کړی دی، خو هیله من یو چې د شعر پالنې تر څنګ د نثر سره هم یارانه جوړه او وپالي. تکل په دې اند دی چې په شعر کې باید مفهوم او الفاظو ته خپل خپل حق ورکول شي په وینا یې چې: څومره چې د خیال عروج په نظر کې نیول کیږي باید په هغومره کچه د فکر د عمق خیال هم وساتل شي. د تکل صاحب ښایسته غزلونه او په زړه پوري ترانې د هیواد بیلا بیلو ترانه ویونکو په خوږو حنجرو نوري هم رنګیني کړې دي. د غه راز یې شعرونه په طلوع افغان ورځپاڼه، ارغند جریده او کندهار مجله کې خپاره شوي دي. دا هم تاسې او د تکل انځوریز نندارتون.



بـار پـه غـــاټولو ، په سـنځلو کـــډې بيرتـه راځـي
سـړ پسـرلی د زيـړو ګلـو کـــډې بيرتــــه راځـي

ســـتا خمارو ســـترګو نيولي دمورچـل ګـــــردونه
رانجـه پښـيمان دي ، دکجلـو کـډې بيرتـه راځـي

مينـو ! زيـری مـي دربانـدي هغـوي بيرتـه راغـلل
ترنـک راغلـی وو ، دښـکلو کـډې بيرتــــه راځـي

ستاسـو يـوه کـډه ، دسلوکـــډو زړونـه کــــاږي
زمـوږ کـــه يـوه ځـي، نـو ترسلو کـډې بيرتـه راځـي

تـر مــــوږ راوړی دی بـــادونو د اوښانـــو بـړ بـړ
سـر پـه شـپيليو پـه بـدلو کــــډې بيرتــــه راځـي

دچنارونو څـــانګو ! پريـــږدئ فـــاتحې او ســـلګۍ
(تکـل) ويلـو دبلبلـــو کــــډې بيرتــــه راځـي





## ودرېږه ! ما هم کندهار بولي

ډېره ښه په دار باندې خبره ده
مينه په خپل کار باندې خبره ده

زه يې د بيابان د ګل چوپتيا ګڼم
ګډه چې په ښار باندې خبره ده

ناست دي د رقيب د ديوال سيوري ته
پاتې مې په يار باندې خبره ده

لا خو ځوانه جانه شيرينو خاوره
ژاړې په ښامار باندې خبره ده

نشته په جومات کې که طالب جانان
ليک يې په منار باندې خبره ده

څرېکي او دردونه دي جرګه - جرګه
بيا په کوم پرهار باندې خبره ده ؟

ودرېږه ! ما هم کندهار بولي
کړې دې په خار باندې خبره ده

ستا ځواب به څه وي وتکل ته نو
درد باندې ؟ که ځار باندې ؟ خبره ده



# دګلونو قیام

موږ یې نه پرېږدو ترمرګه زموږ پام دي
شهید شوی که دمینې احترام دي

جزیرې مو ویښې کړې دي له خوبه
په شرنګیو زنګولی مو باګرام دی

چې ترلې یې پسې ورځو سپین نیتونه
شکرخدایه لاسپین لمرخو سپین امام دی

بیا نرګسو ګلابونو او غاټولو
ټولو کړی دخزان خلاف قیام دی

ثه مغرور آسونه تښتي له ډګره
ایوب ایښې دمیوند په درشل ګام دی

دښکیلاک منګولې نه پرېږدي خپل واک ته
دځوانانو دي تکل ته خو سلام دی

# عبدالرحمن معتصم

عبدالرحمن معتصم پر ۱۳۵۸ ل ، کال دغزني ولایت دناوې ولسوالۍ د زرنخېل کلي کي دعبدالله خان په کاله کي دنیاته سترګي پرانیستلي دي. لومړنۍ زده کړي یې دخپل کلي په ښلابښلو جوماتونوکي ترسره کړي اومنځنۍ هغه یې په پاکستان کي سرته رسولي دي.معتصم په زده کړه بوخت وچي په ګران هیواد کي دطالبانو اسلامي تحریک منځ ته راغی،همدغه تحریک یاولسي پاڅون چي په ډیره لنډه موده کي یې دهیواددجنوب اولویدیځ زیاتي برخي فتح کړې په تېره بیاکله چي یې په لویدیځ کي ترشنډنډه پوري دشراوفساداډې اوپوستې یوپه بل پسې ټولي کړې ،نوپه دې وخت کي معتصم دنورو ملګرو په څېرد همدې بهیرګډونوال اودشنډنډ په لومړۍ کرښه کي میشت شو. معتصم دشنډنډ په لومړۍ کرښه کي اول وارسرسري خودوهم ځل داسي ژوبل شوچي خپله راسته پښه یې په کي وښندله. دروغتیاسره سم یې دکندهار په جهادي مدرسه اوبیا په حقانیه مدرسه کي یوځل بیاپه زده کړوپیل وکړ ،خووخت په وخت به یې له مجاهدینو سره په تشکیلاتو کې هم سهم اخیست ،تردې چي دکابل شمال ،کندوزاوتخارته یې سفرونه ورسره کول. معتصم دپکتیکا ولایت دسرحدي ګمرک درئیس په توګه دنده ترسره کړې ده. دامارت له سقوط څخه وروسته دکندهار دمیدان په امریکایي محبس کي پنځه میاشتي اسیرشوی دی .ښاغلی معتصم دحساس احساس ،خندرویه څېرې اوښایسته اخلاقوڅښتن دی ،ټوکي ټکالي یې خوښېږي دچاخبره خپله هم ترچاکم نه دی خپل وارنه پرېږدي.د ډیره وخته له شعرسره مینه لري اوله ښایسته مودې راهیسي خپله هم شعرلیکي چي تردامهاله یې دیوې ټولګي په اندازه ناچاپ اشعارزیرمه کړي دي .

# ایمان

دافطرت دی چي رڼا به مي خوښېږي
درقيب پرځای اشنا به مي خوښېږي

عقيده دوحدانيت چي لرم زړه کي
لااله الاالله به مي خوښېږي

چي دنور په پلوشو يې جهان روڼ شو
نوښکلا دمصطفي به مي خوښېږي

چي دحق په مينه مست شي ګډشي اورته
داسي عشق داسي وفابه مي خوښېږي

چي قدم پرقدم اخلم امتحان دی
ژوند دصبر اوتقوابه مي خوښېږي

داچي نن جانان ګټي جنګ له رقيبه
معتصمه ! داغزابه مي خوښېږي

## محمودي روزنه

که شم خوراک د سرو لمبو خوزه خپل یار نه پریږدم
تهمت دي زور واخلي نورهم د میني کار نه پریږدم

داسي درځم لکه شبنم له سپین سهاره سره
ګلابه ستا په مخ به زه هیڅ وخت غبارنه پریږدم

تیاري دهجر دي لانوري راشي تیري به شي
ځم تروصاله زه همدا اجنتي لار نه پریږدم

دزړه له ځړیکو اودردونو به خبر نشي زما
ترمجنون مخکي یم پرمخ اوښکي قطار نه پریږدم

وایمه حمد دخپلي میني په پایمه
خپله خمار یمه رقیبه بل خمار نه پریږدم

اخیر به زه هم پرخپل خدای لکه خلیل ګرانیږم
چي وخت مي غورځوي واورته خپل اقرارنه پریږدم

ته به وا ستا وانتقام ته یم محمود روزلی
لکه غزني پولنډي ځواک دي په قرار نه پریږدم

غماز مي نشي تورولای سپیڅلتوب د میني
چي زه جانان جانان ناري پرسر ددارنه پریږدم

چي معتصم تل په غزل زړونو ته لاره باسم
غمونه وژنم دچاشونډوته پرهار نه پریږدم



# مالیـــــاریـم

اوس زلمـــی شـــومه دمینـــي
افتخـــارمي خپلـــي وینـــي

پـــه ســره اور کـــې روان خـــوښ یـــم
دزړه هیلـــي مـــي رښـــتیني

پـــه ســـپیڅلو ارادومـــي
دایمـــان پـــه پلوشـــومي
شـــوې مـــاڼۍ دتـــور تـــم ورانـــي
پـــه نـــارو دتکبیـــرو مـــي

زه دهیلـــو یومالیـــار یـــم
دتـــاریخ پـــاڼي رنګینـــي

خـــوچي ثـــومره راتـــه ګـــران دی
هـــا ازمـــون اوامتحـــان دی
لاتراوســـه بـــریمن یـــم
دایـــو فضـــل دســـبحان دی





خــــوچي ښـــــکلی پـــــه تقــــوایم
پـــــرې راځـــــي دي ازمــــــویني

خوتـــل خـــدای تـــه پـــه ســجدو کـــي
اوخوږوخــــــــوږوذکرو کـــــــــې
ورتـــــه راز دزړګـــــي وایـــــم
هـــم پـــه ویښـــه هـــم خوبـــو کـــي

چـــي دویـــــر تـــــوري فضـــــاوي
شــــوې ومــــوږ تــــه ګلــــوریني

داځـــــه ښـــــکلی امـــــارت دی
چـــي پـــه برخـــه موعظمـــت دی
دحریــــت ســـــتوري ختلـــــي
ښـــه نظـــــام دعــــدالت دی

معتصـــــم پــــــه مینــــــه مینــــــه
کــــوم تـــــل داســـي ســـــتاییني



# عبدالرحمن کامران

عبدالرحمن کامران دعلي خان زوی ،پر ۱۹۸۰ز،کال دغزني ولايت دناوې ولسوالۍ کې زیږيدلی دی ،په ۱۹۸۱ز،کال کې یې کورنۍ دبلوچيستان ايالت لورلايې کې دمهاجروپنډغالي ته کډه شوې ده ،هورې يې لومړنۍ ديني اوعصري زده کړې یې ترشپږم ټولګي لوستي دي اوبيايې دهمدې ايالت په مختلفوسيموکې په بيلابيلودينوي مرکزنوکې درسونه ويلي دي. پر۱۹۹۲ز،کال یې دطالبانوداسلامي تحريک په اډانه کې په جهاد ي کاروانونوکې تر کابل ،کندوزاوهرات پوري مزلونه کړې دي.ښاغلي کامران دامريکايې يرغل څخه وروسته په کندهار،هلمنداوزابل کې دروان جهاددګڼومحاذونوپه ګرمو سنګرونوکې برخه اخيستې ده. کامران اوس هم جهادکوي ،درسونه وايې ،شعرونه ليکي اورقيب ته په جاروايې چې:وطن سره مواسي مينه ده چې وينه پرې تويووا ودبيلتانه يې حساب درسره کوو:

وطـــن ليلامورمجنونــــان دوطـــن
پرلمبوکووطـــــواف دمينـــــي

سپېڅلی عشق دی هروخت ننګ پرې کوو
زړونــه موجوړشـــواوس کبــاب دمينـــي

موږبرملامينـــه کـــوودورغ نـــه وايـــو
ورکووهرچاتــــه ځـــواب دمينــــي

دفـــراق يوســـاعت پـــه کـــال بـــدلوو
اخلورقيـــب څخـــه حســـاب دمينـــي

کامران لس کاله مخ کې په شعرليکلو پيل کړی دی ،دوې ټولګي ناچاپ اشعارلري اودايې هم دشعرنمونې



## اول دي مه منله

غلیمه نه به کړې ګیله اول دي نه منله
نن درته شوه خورادرنه اول د ي نه منله

دلته دميني قدرشته مينه په وينه ساتو
او س درته جوړه شوه لانجه اول دي نه منله

تل موخيرلي دي دډيروګريوانونه دلته
دبخت بيړۍ دي شوه چپه اول دي نه منله

تاخپل تندي له ډبرين غره سره وجنګول
په درديې ويښ شولې کنه ؟اول دي نه منله

دا سلامي رونې اندومينه درمعلومه شوله ؟
قربان دعشق له مدرسې اول دي نه منله

موږپربېمنځوخپلي سينې هروخت په خپلووينو
وړوله هرچامقابله اول دي نه منله

اوس دکامران زړه دربانـدي يـخ شـوا الله
چي کړې له خوبه تل ناره اول دي نه منله



# دمیدان کلی

ځوانان چي سپيني توري دميدان کلي ته وړي
زيانونــه بــه دســرتول دښــمنان کلــي تــه وړي

داکورد مســلمان نامســلمان پکــي شــرميږي
لــه ګټـي نــه توبــه اوس بــه تــاوان کلـي تــه وړي

ژونـدي کلـه پـاتيږي ،بـې ګـودره چـي ګـډيږي
سرځوړند ټيټي سترګي پـه ارمـان کلـي تـه وړي

داستادتوري شـرنګ اوسـتاهمت وارخطـاکړي
داروغ رمـتې بـه تـول نـن ليونيـان کلـي تـه وړي

دنـام وننـګ ميـدان تــه مجاهـدجانان راغلــي
پرهـر- پرهرسـينې بـه صـليبيان کلـي تـه وړي

مستي شـوه ورنـه هېـره دغـازي لومـه کـي رالـو
بــاران بــه نــن داوښــکودګريوان کلــي تــه وړي

دتوروغروپـه سـرکي غـنم رنـګ جانـان تـه وايـه
دفتحـي بـري زيـرى بـه کـامران کلـي تـه وړي

## شهیدان

نه مړه کیږو او نه مړه یو شهیدان یو
ګورئ واړه بختور په دوو جهان یو

پاک الله را سره داسي سودا کړې
جنتونه چي اوس سیخ یوور روان یو

پاکي حوري محبت را سره ډیر کړي
موږ یې واړه نازولي مهمانان یو

له دوزخ نه به اویا ګنهګار خلاص کو
ډیر سرلوړي د الله په دې فرمان یو

زمونږ وینه چي وځمکي ته رسیږي
د الله له لوري معاف په هغه آن یو

موږ ت خو مره صفتونه خدای را کړي
رنګه جامه موده کفن لکه ګلان یو

که مو ملګري شوې کامرانه په کاروان کي
زیري واخله ستاد وصل په ارمان یو

# عبدالستار سعيد

عبدالستار سعید اووه ویشت کاله وړاندي (۱۳۲۴ل، )دهجرت په مهال دشمالي وزیرستان په رزمک سیمه کي دحاجي سعیدجان په کورکي نړۍ ته سترګي غړولي دي.اصلي وطن يې دپکتیاولایت دزرمت ولسوالۍ دمموزو سیمه ده ،پرافغانستان دسره ښامارله یرغل وروسته د دوی کورنۍ شمالي وزیرستان ته هجرت وکړ.لومړنۍ زدکړي يې دمهاجرت په کمپ کي کړي ،بیرته هیوادته په ستنیدو يې په زرمت کي ترځلورم ټولګي ښوونځی لوستی دی ،وروسته يې دګردیزښار دحضرت بلال بن رباح په درالحفاظ کي دقران کریم حفظ سرته رسولی اوبیا يې دغزني په نورالمدارس فاروقیه کي یوکال تېرکړی ، دقرانکریم دحفظ سند يې ترې ترلاسه کړی اود دستارتړلو شرف ورپه برخه شوی دی . ثانوي زده کړي يې دافغانستان او پاکستان په مختلفو ایالتونوکي کړي دي او لویه د (احادیثو )دوره يې دبلوچستان ایالت دچمن دسرحدي ښارګوټي په الجامعة الاسلامیه مدرسه کي کړې ده.

ښاغلی سعید دټینګ عزم ،سپېڅلي احساس ،غښتلي استعداد ،لوړخیال اوژورفکر څښتن متواضع ځوان دی.په سړه سینه مستدللي خبري کوي ،مخاطبین يې په لوموړۍ ناسته کي مینه ،عاجزي او اخلاص حس کولای شي. تکړه لیکوال ،طناز ،ښه مبصراوشاعردی ،په پښتو ،دري اوعربي ژبو لیک اولوست کولای شي اوترسلوزیاتي سیاسي اوټولنیزي لیکني اومقالې يې په مستعارونومونو په بیلابیلوویبپاڼواومجلوکي خپرې شوي دي.

له ډیره وخته د شعرسره مینه پالي ،ددوولسوکلونوراهیسي خپله هم شعرلیکي، ددوو ټولګو څخه زیات شعرونه يې په بیلابیلوفورمونوکي لیکلي دي ،دشاعرۍ ډیره برخه يې حماسې ده ،ځیني ترانې يې دهیوادنومیالیو ترانه ویونکومترنمي کړي هم دي.



# قیــــــــام

ســــرغړاوی مودنااهلولـــه امـــام کـــړی دی
دوی ورته سرپه سجده ایښی مونږ قیام کړی دی

په سرچې سپینه پګړۍ وړم په زړه ژور زخمونه
دشاهیکوټ واورینو څوکوته مې پام کړی دی

سرونه لاس کې غواړي مات کړي پرې تندی دغلیم
دې څوزلمــو مــو بیاتکـل دانتقـام کـړی دی

لکــه دستوروهرســهار لــه رڼـا ځـان څـاروو
اولــه تیارونــه بغـاوت مـو هرمابښـام کـړی دی

موږ په تاریخ کې بس همدومره کارنامه لرو چې
دتــن پــه وینــو مــو دمینــې احتـرام کـړی دی

ســعیده داچــي غربونیــولی اوغــزل غــزل یــې
بیـادې دکوم اشنا وشناختې تـه سلام کړی دی

## وطــن افغانستـــــان

داد الا الله پــه ځــوږ ودان کــه هرڅــو وران دی
زړه دی ځــان او تــن مــو دی وطــن افغانســتان دی

داد فطــرت نــاوې لا پــر ځــان وهــي لا ســونه
ږدي لا پــه تنــدي لــه پــاکو وينــو سره خالونــه
رپـــي هـــره خوا پـــه شـــهيدانو د ســـمالو نـــه
ســـرووينو راوړي لوردلـــوره ســـره ګلونـــه
شــپه وي ســپوږمۍ وايي لــه ځنګلــه سره رازونـه
يـــخ شـــمال تـــه ښـــوري دنښـــترو وربلونـــه
غرونـــه زبـــون وهلـــي وي ولاړ مغرورســـرونه
شـــنو دروکـــې تـــم وي دغازيـــانو کاروانونـــه
تـــوره شـــپه وي بـــل پـــه شـــهيدانو مشـــالونه
ښکاري لاهم ځای ځای په اورغـالوکې اورونـه
سينده مســتۍ نــاخي شنې ځپې وهــي ټوپونــه
نـــوره خاموشـــي وي هـــره خـــوا خـــواره وزرونـــه

لانــدې شــهيد زار بريــږي لــه ســتورو ډک اسمان دی
زړه دی ځــان او تــن مــودی وطــن افغانســتان دی

زيـری دلمرخت وي پـه ختيـځ افـق سـپيدې شـي
شـرنګ دتکبيروشـي آذانونـه شـي نعـرې شـي
زرکـې پـه مسـتۍ شـي دتنځـرو غرغـرې شـي
شـــوروي تـــرنم وي ســـندريزې انګـــازې شـــي
ساه دژوندون راوړي دسهار خـوږې وږمې شي

وینــې لــه خیــالي خوبــه ستــومانه پرګنــې شــي
مــړه نغــري تــاوده شــي دلوګیو سلســلې شــي
ښکلې په سپین روبو جوماتونه شي دېرې شي
کــاردډین دنیــا اودزلمــومتې اوږې شــي
پیڅکــې دپتمنــو پــه ګودرخــورې ورې شــي
سپین سپیڅلی ژوند شي تراوبو رڼې شبې شي
دلته تش یوه خدای ته پنځه وخت سجدې شي

دې اولــس رودلــی لــه شیدوســره ایمــان دی
زړه دی ځــان اوتــن مــودی وطــن افغانســتان دی

دالــه تــورو خــاورو جوړ دسپینو واورو کــور دی
خــدایږو دفطــرت درنګینــو عجیــب انځــور دی
هلتــه لــړې پــاڅي پــه پــردو بــل شــوی اور دی
دلتــه وږمــې نــاځي دلونګولواولــو ردی
هــم بلــخ اوهــرات دی دفــاني مردانــو ګــوردی
هــم دعــزم څلــی قنــدهار غزنــی کــه غــور دی
دې زانګو روزلــی دمحمــود پــه شاني سپوردی
دې خــاورې زوکــړی درومــي دشــپیلۍ شــور دی
داچــې هرجابرورتــه لــه قهــره شــین اوتــوردی
خــدایږو ورپــه غــاړه دبلاســرونو پــوردی
دلتــه اوبــه شــوی دچنګیزدمړونــد زوردی
دلتــه دیونــان مسکو لنــدن ستــوری نسکوردی

غشــی دتقــدیردلاس ویــاړلی خراســان دی
زړه دی ځــان اوتــن مــودی وطــن افغانســتان دی

دلتــه چــې راغلــي دهغــو برخــې ســپېرې دي
دلتـــه لـــه پـــردو ککـــرو جـــوړې منـــارې دي
دلتـــه پـــه بیـــدارو زلمـــو ښـــکلې ســـردرې دي
دلتـــه لـــه ویـــدو غـــازیـــانو ډکـــې هـــدیرې دي
ســترګې دشــیربرېتو لــه جلالــه تکــې ســرې دي
تـــورې دنیکونـــو یـــې لاځـــل وهـــي تبـــرې دي
دادایمـــان کـــوردی دلتـــه بیلـــې ننـــدارې دي
تنـــدې دزړو مـــاتې دقـــران لـــه فـــوارې دي
دلتـــه پـــه هـــرچم کـــې جوماتونـــه دي حجـــرې دي
دلتـــه دکوچنیانوپـــه لاســـو کـــې ســـیپارې دي
دلتـــه کورپـــه کـــور دالاهـــو نعـــرې خـــورې دی
مینـــدې دي دعـــاوې پلوونـــه دي اســـرې دي

هـــرې مورغـــازي بچـــی ایســـتلی ترقـــران دی
زړه دی ځـــان اوتـــن مـــودی وطـــن افغانســـتان دی

زړه دی داســیا لاخــو غورځنــګ وهــي درزیــږي
چاویـــل چـــې شـــیبې دځنکـــدن یـــې رالنـــډیږي
لایـــې پـــه هـــډو کـــې ایمـــاني اروا چلیـــږي
لاخـــو یـــې رګونـــه دآمـــو هلمنـــد بهیـــږي
ســپین واوریــن پــامیریې لالــه قهــره رانړیــږي
لایـــې هـــم لـــه رعبـــه ددنیـــا زړګی لړزیـــږي
هرڅـه بـه میـرات شـي د لتـه ننګ نـه میراتیـږي
وینـــې دزلمـــو تـــل تویېـــدو تـــه هوســـیږي
شـــته ملالـــې شـــته لادمیونـــدټپې غږیـــږي
لاهـــم لـــه پړونـــو نـــه توغونـــه تـــړل کیـــږي



چاته ټيټې مه شه لاد ننګ شملې رپيږي
لاهم د سعيد د پګړۍ سپين ولونه ځليږي

ځارترې ايماني هيبت يې پروت په درست جهان دی
زړه دی ځان او تن مودی وطن افغانستان دی
دادالاالله په ځوږ ودان که هرڅو وران دی
زړه دی ځان اوتن مودی وطن افغانستان دی

څو که سراسر ګل او ګلزار يمه
بيا هم لا دډيرو په زړه بار يمه

آفرين دزړه په سر کې مات غشيه
ستا له برکته وينښ بيدار يمه

ستوری يمه لمر ته هرکلی وايم
زه دخپل قاتل په انتظار يمه

څوک راته يوڅه او څوک بل څه وايي
خدايزده چې منصور يمه که دار يمه

چا وې چې دګل سترګو کې ګل يمه
خار يمه دخار دلارې خار يمه

هير مې نه کړې ګوره درنه هير نه شم
ستا دنيمه خوا هيلو مزار يمه

ما دمدينې شراب نوش کړي دي
پام کوه سعيده چې خمار يمه

# عبدالشکور رشاد

علامه عبدالشکوررشاد د ۱۳۰۰ل ،کال دلړم پر۲۳مه نیټه د کندهار ښار د بابړو په کوڅه کې دنومیالي عالم اروابناد عبدالغفورخان په علمي کورنۍ کې زیږیدلی دی.

پوهاند رشاددیني اوعصري علوم ترډیره حده له خپل اروابناد پلارڅخه ترلاسه کړي دي ،دپلارتروفات وروسته بیاد ځانګړوزدکړواوعلمي څیړنولپاره هندستان ته تللی دی. لومړی شعر یې دعمرپه دیارلس کلنۍ کې ویلی، او لومړۍ څیړنیزه لیکنه یې په ۱۹۴۱ ز،کال د افغانستان په مطبوعاتو کې خپره شوې ده .

اروابناداستادرشاددکابل پوهنتون د ژبو، ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي په پښتو څانګه کې استاد او بیا د دغه دیپارټمنټ (څانګې) دمشر په توګه پاته شوی دی او د وخت لوړه علمي رتبه پوهاندي یې په ۱۹۷۴ م کال کې تر لاسه کړې ده .پردې سربیره استادپه هیوادکې دننه اودباندې هم دښوونکي دنده ترسره کړې ده .داروابناد استاد پارسي، عربي، اردو، هندي، سناسګریټ ،روسي ،انګریزي ، ترکي او جاپاني ژبې زده وې آن پر خپلې مورنۍ ژبې سربیره یې په فارسي او اردو ژبو کې هم شعرونه لیکلي دي.

پوهاندرشاددخدای ورکړي غښتلي استعداد ،څیرکتیا ،پراخې مطالعې ،ژورې پوهې اوپرله پسې هڅوله برکته افغاني ادب ،تاریخ او کلتور ته بې ساري خدمتونه کړي دي.یوسل او پنځوس(۱۵۰)علمي ،تاریخي ،ادبي اوڅیړنیز اثار،په سلهاوومقالې ،دنړیوالوادبیاتوژباړې اوخورازیات شعرونه یې خپلې ټولنې ته وړاندې کړي دي.

علامه رشاد دسپېڅلي ملي احساس ،پاکې ارادې ،کلک هوډاوافغاني غرورهغه دنګ څلی ؤچې په راپربوتویې افغان ولس په ځانګړې توګه ځوان کهول په هیڅ صورت هم تشه نه شي ډکه ولای ،ځکه هغه مشفق استاداولارښود ،

سترګورمؤرخ ،اوځارڅېړونکی ،ښه اديب ،منلی ليکوال ،شاعر،تجربه کارمشر اوزړسوانداوهوښيارسپين ږيری ؤ. په پټوسترګويې دچاتقليدنه کاوه ، دهغو ناپوهوپوهانوپه څېرنه ؤچي دښکېلاک له شوموموخودي غافل وي اويادي په عارفانه تجاهل سره دولسونوپه سترګوکي خاوري ورواچوي ،اونه هم دهغومؤرخينواواديبانو غوندي ووچي دځه مادي امتيازپه بدل کي ارزښتونه مسخه کړي اوواقعيتونه ترخاوروخځلولاندي کړي.هوخدای بخښلی رشاددهغوپه څېرنه ؤچي دچوکۍ هوس يې دوخت دهرګبروترساغيږي ته ورټېل وهي ،هغه که په کابل کي اوسيده خوپه ډاکه يې ديوويشتمي پيړۍ داستعماراودهغه دبدوعواقب په اړه ويل چي:

طاغوتي لښکرله قهره سره ايشي
زموږهيوادغريب په لويشتوسره ويشي

دزاړه استعماردغه نوی رنګ دی
ګورئ داديوشتم قرن فرنګ دی

پرنګي اوروسي زاړه غچونه کاږي
بش دنوي استعمارنقشونه کاږي

سي آی آې ږدي په دې چم دمکرليمي
خپلوي دمنځنۍ آسياسيمي

داټګان دسياسي نفوذلپاره
جوړوي په دې پلمونظامي لاره

جوړوي دشردوستان دلته اډې
په نامه بشردوستان دلته اډې



رشاد د شوروي اشغال پر مهال هم په کابل کي اوسېده ، خو مضامين او شعرونه يې په مستعارو نومونو د کابل د کمونست رژيم او دهغوی دبادارانو (سرولښکرو ) پرضد له هيواد څخه بهرپه بيلا بيلو خپرونو کي نشريدل .رشاد د ژوند ترپايه د چادرزراوزور څخه نه دی متأثره شوی په هرميدان کي يې بې خاره خپله رايه اونظر ښکندا وه. دادب او تاريخ ،څېړني او تدقيق ځلانده لمرپوهاند علامه رشاد د ۱۳۸۳ ل ،کال د لېندۍ د مياشتي پر يوولسمه (۱۱مه) نېټه، په کابل کي د ۸۳کالو په عمر د زړه د ناروغۍ له امله په حق ورسېد.

انالله و انا اليه راجعون

## خپلواکي

د مجنون ژوندون به څه وي چي ليلا مري
څه په کار دی تش کالبد چي زړه د چا مري

زړه د بوده دا د خېټو په قالب کي
خدای و مه کړي چي به دا د بوه د چا مري

چي مرغه ولاړ سي قفس د ماتېدو دی
که به زړه مري تش کوګل دي لا پخوا مري

حريت د هر ملت د بدن زړه دی
که دا نه وي هم ملت مري هم بقا مري

چي د بل د اسارت په لومه اړ سي
په هغو زړو کي غيرت، خودي، غنا مري

# دتو دوو ينو حمام

ترور يـــزم د اســـلام پـــه ضـــد پلمه ده
دا پلمـــه دصـــليبي جنـــګ پيلامـــه ده

دا ټګـــي ده دا برګـــي ده دا نېرنـــګ دی
پـــه وينا د مســـتېربوش صـــليبي جنـــګ دی

د ســـپين بـــرج اهريمنـــان د شـــر خدايې کـــا
د يـــــزدان د پيروانو ســـــر کوبي کــــا

ايـــل شـــارون دی مقتـــدي جـــارج بـــوش امـــام
غـــواړي ونغـــاړي کمبلـــه د اســـلام

ټـــوني بلېرد دغـــه چـــرچ سيانه کشـــيش دی
ديهود و د ترســـــــــــــا د ګټوويش دی

ســـينا ګوک او کليســـا دی لاس يـــو کړی
خـــدای و مـــه کـــړه د مســـجد به کـــاږي زړی

نيـــت لـــري کنبـــېږدي کعبـــې تـــه اټـــوم بـــم
ګړوبـــوي زمـــوږ د مکې ښـــارچم پـــه چـــم

مـــــــد عي د انســـــــــانانو د حقونو
دي ريښـــــې کـــــاږي د بشـــــر د ژوندونو

دا عجبـــــه د بشر بشر د و ســـــــــتي ده
دا دو ســـــتي د بشـــــر نه ده، شر دو ســـــتي ده

ازادي دبيـــــان فكر، عقيـــــدې
دي پــــرمخ د سياســـي ګټـــوپردې

سياســي ډيموکراســۍ ترهغوښــې دي
چــي دڅو امپرياليستوښــې پکښــې دي

مريتــوب دامپريــاليزم ليبراليــزم دی
خپلـواکي کې ځينـي غوښـته تروريـزم دی

راکټونـــه چـــي راځغلـــي قهريـــدلي
اچـوي دمځکـي شـکم تـه دڅونـد څلي

دارانــده رانــده بمونـــه هرلـــوراوري
پرکښـت اوري ،پـربڼ اوري ،پرکـوراوري

لولپـــه يـــې کـــړل دخلګـــوزاړه نـــوي
لـــه درزايـــې دکمکيـــوزهرې چـــوي

پـــه بمواوپـــه توپوبـــارې چـــورلکي
چـــي راځـــي پرودانيوپاشـــي ټکـــي

دملـــي حاکميـــت بـــې پروايـــې کـــړي
دافغـــان دخپلـــواکۍ بـــې حرمتـــي کـــړي

دبــري دســرداري منحـــوس هـــوس دی
پـــايولي چـــي علاونـــه عســـس دی

مســـلمانه ! خطـــرپيښ دی واســـلام تـــه
دمحمـــــد(ص)دامت واســـتحکام تـــه

په لويديځ او امريکا کي چي مسلم دي
ديهود او نصارى په خيال مجرم دي

دا اثر د صليبي جنګ دا علان دی
صليبي جنګ د جارج بش د خولې بيان د ی

او روي بشر دوستان پر افغان تکي
زمور مېرې په شهيدانو سولې ډکي

هر راکټ چي راځي مبتلي په کوروکي
بغض وکين دامريکا کړې په زړو کي

دلته ويره د بلا توره وريځ ده
دلته تکي تري راوري دويرورځ ده

دلتهويني له رګونو راخوټيږي
دلته اوښکي دغمجنو رابهيږي

ټول ول د مړوسترې کړل ځوانان
نه رسيږي د ټپيانو په درمان

ړنګوي دا حق پالونکي مسجدونه
ړنګوي دقام په وينو محرابونه

راکټونو مود برې راهديرې کړې
تو غندويو موودانې وېرانې کړې

زمو ږښارونه يې پر مو ږ کړل دو ږخونه
سرې لمبې ، خړې لوخړې ، توردودونه

دلته حق دهرضعیف غریب پایمال دی
دلته نن دهرکمزوري بد حال دی

داچي وايي زوروزترهرڅه حق دی
زوروروايي :داڅه مهمل سبق دی

رښتیاداده زوردی حق پوه سئ ښاغلو
پس له دې مستې پوکئ شیدوداغلو

دلته هرچیري دغم کیسي خیرې دي
په ښیراوودمظلوموسترې خولې دي

کوندې ژاړي ،بوري ژاړي ،وراري ژاړي
داناورین پرامریکاله خدایه غواړي

چي ساتي سپینه ماڼۍ په بموګټي
فرش یې کړې ترتلولاندي سرې سکروټي

غمخواره دبشرولي زموږبندونه
په اوبوموورې دملک کلي کښتونه

راسئ وګورئ بد حال دافغانانو
داهجوم دافتواوبلاګانو

دبشردکرامت حامیان څه سول ؟
دوړو ،زړودحق حافظان څه سول ؟

پنتاګون وايي دجنګ په دووهفتوکي
پرافغان دبشردوستوپه حملوکي

اورولي دي مورېدوه زره کروزونه
په ويشتلي مودي خپل خپل هدفونه

زمورېجنګي سلوبمباروطيارو
اچولي دي بمونه په زرو

هدفونه زمورېجنګي جبه خانې دي
دوسلولوځي اوپټې زخيرې دي

راډيو ،مخابرې اورادارونه
ورپسې دالوتکوميدانونه

زمورېوسلوچي خطاکړې نښانه وي
دملکي وژلوشمېربه زرتنه وي

وژل سوپه اورسوي دي رمې هم
ويشتل سوي په دښتوکي دي رمې هم

له دې مړوسره ګوروسلې نسته
مردک نسته ،ټوپک نسته ،چړې نسته

اى بې وسوافغانانوپه دې پوه سئ
چي اخرته به زمورېجوغ په غاړه يوسئ

داويناد پنتاګون خلګورښتياده
نمونه يې دمزارجنګي کلاده

چي جارج بوش دانيلاپرپله روان سو
دتودووينوحمام افغانستان سو

## سانده

کــه څــه پرشــنخته دمظلوموطالبــانولیکئ
کــه څــه پــه ویرکــي دکوړاګوبــاتورانولیکئ

که څه پــه غــم کــي دنامرادوځوانیمرګوواياســت
کــه څــه پرمــرګ دبــې دفاعوشــهیدانولیکئ

غــاړه بــه جګــه ســي دویاړ، ســربه ســي لــوړدفخر
کــه څــه پــه یاددخوشــبینئ دقربانیــانولیکئ

چــي پــه دیــدن پســي یــې زړونــه ترپردوراوتــل
کــه څــه پــه مړینــه دهغوخیــالي ځوانــانولیکئ

دجنتونــودروازې دي ورتــه خلاصــي ،ورســئ
کــه څــه احــوال ددې قبرونودبنــدیانولیکئ

پرتصــورباندي لــه درده ،ســره بخــري اوري
چــي تصــویرونه دغمیــزې دســیالانولیکئ

دقلــم ژبــه بــه دغــم پــه سروسکروټوســوځي
کــه څــه پرګوردســوځیدلوپتنګانولیکئ



خود کاغــذ رنګ یــې زریــن ســي د ایثار د بیـــان
کـــه ثـــه پـــه ویاړ د توریـــالیو اتلانو لیکئ

دا عهـــد دي وي چـــي نور د چاپر عهـــد باور نکوو
چـــي لغتونـــه پر تزویر د بد عهـــدانو لیکئ

ای د یـــارانو د بیلتون پـــه کتـــار وزخمیو !
د زړه پـــه وینـــو بې د رزونـــه د زخمیـــانو لیکئ

ســـرې اوښـــکي ورســـره د ناند و بورو مینـــدو
پـــه ترمو اوښـــکوېې دوراروبـــي بـــي ګـــانو لیکئ

چـــي یـــې پـــه وینو د نـــامرادو وي ریښـــې خړوبـــي
دادو یر لیـــک دهغـــه نـــل پـــه قلمـــانو لیکئ

چـي یـې سـینه وي غلبیـل شـوې د بیلتـون پـه غشـو
دابـــه لپـــاره د مهجور و مینـــانو لیکئ

ولولـــوکي یـــې دالله اکبر د شـــعار
پـــه کربلا کـــي د تـــازه جونو کونـــډیانو لیکئ

---

[علامه رشاد: د تودو وینو حمام افغانستان شواو www.rashad.com]

# عبدالعلي تسل

عبدالعلي تسل دمرحوم ملامحمد يوسف اخوندزوی دهلمند ولایت دګرمسیر ولسوالۍ ددرویشان سیمي داولس خان دکلي کي اوسیدونکی ، شپږویشت کاله وړاندي(۱۳۶۵ ل) دبلوچستان ایالت دګردي ځنګل دافغان مهاجروپه پنډغالي کي پیدا شوی اوڅه موده ورسته بیا دهمدې ایالت په پنجپایې کي دمهاجروکمپ ته کډوال شوي دي. لومړنۍ زده کړي یې له خپل پلار څخه پیل اوترپنځوکلونو پوري یې په مختلفومدرسوکي دوام ورکړی،منځنۍ زده کړي یې دکوټي ښاراوپېښورکي ترسره کړي او اوس ددیني علومودمروج تعلیمي نصاب سره سم دتکمیل پړاوراندوي.

ښاغلی تسل دریښتني میني هغه لاروی دی چي دژبي اوځان ځارولو په دواړوډګرونوکي اغیزمنه ویاړلې مبارزه کوي ،یعني پریوه وخت په قلم اوټوپک داسلام اوهیوادپرغلیمانوګوزارونه کوي. دازادۍ سپاهیان ستایې دمورچل یخ اوګرمۍ سوځلې څېره یې له تورلونګ سره تشبیه کوي:

ای په تورګړنګ کي ناست توره لونګه
ازادي دي په څېره کي راښکاره شي

پر شعرلیکلو یې ترلس کاله زیات وخت اوښتی دی ،دیوې ناچاپ مجموعې هومره یې زیرمه کړي دي.



# دغرب پیاوړي

تښتي دغرب پیاوړي ستړي نورله جنګه ښکاري
دخراسان دعظمتونو شمله دننګه ښکاري

دلته يې دېرو نازولو ککرۍ وخوړې
سپینه ماڼۍ داریاناله وهمه رنګه ښکاري

دناروا یرغل په نوره ګټه نه پوهیږي
نړۍ دفقرځولۍ ګرځوي ملنګه ښکاري

داستشهاد ستوروچي وویشتل پرتوره تنده
دوحشتونو کلاګوره رنګه بنګه ښکاري

چې اساسي قانون بدل شي دقران په قانون
دپاپ خبره به دشیطان غونډي........

دلته تراوسه یرغلګروسوبه وړې نه ده
دیرغل توره پاته شوې له اورنګه ښکاري

هغه دبون خبري پاته شوې دبون په غیږکې
اوس دغازي شپېلۍ دهرکلي له څنګه ښکاري

تسله موږ ته دخالد خنجرمیراث راپاته
ځان به غلبیل کړي چې دچاسینه خشنګه شکاري

## درومي

دلو ديځوالودمرکزلـــــه غــــولي دوړي درومـــــي
پـــه درځنونودصـــــليب دلښـــــکرمړي درومـــــي

د کـــريملين ځيــــري ګريــــوان تـــه دي پـــه ځيروګـــوري
دلتــه چي ځـوک راځـي پـه زورهغـه بـه ستړي درومـي

زمــــــوږه خـــــاوره دجــــــلال اوهيبتونـــــوغيږده
ډيـرزاره ترکـي بـه هـالبروک غونـدي اومـړي درومـي

بيابـه ميلمـه شـپونکي شـپيلۍ دخوشـحالۍ ږغـوي
دبشرخوروسورلښـــکرله تـــوري بـــوړي درومـــي

پــــه کليوالـــوکي احســـاس دازادۍ زيـــات شــوی
نوربـــه لـــه چمـــه ســـتمګراوډبرزړي درومـــي

هريــــوويريږي چــــي يــــوازي دلتــــه پاتــــه نشــــي
ډيروارخطـــــادي دناټواتحــــادغړي درومـــــي

اولســـه !ســـترزيری تســـل دخپلـــواکۍ درکـــوي
جګـــړه بـــايللې ده دغـــرب خـــوني وګـــړي درومـــي

## غازي لاليه !

د سلګیو په مالت کې اوداو ښکو په دیره کې
اوس بلد یو غلیمګیه موږ دوینو په کوځه کې

دلته تاغونډي سرمستو نورو هم لاپي وهلې
ته یې وپوښته نږدې دي دختیځ په علاقه کې

په ساده راکټ لانچر دي لوڅ په ټیکنالوژي شوه
څودي راوړل څودي یووړل چینوک نامي طیاره کې

له کاري واري دي ځارشم د مورچل غازي لالیه !
راشه وته ومبم ګلان دي دغیرت هسکه شمله کې

تابه هم په ګوډاګیو اجیرانو وي شمېرلي
څوقیدیان ول څوبهرشول څودرپاته جیل خانه کې

په سلګونو بندیان وزي غلامان دي ناخبره دي
شبګیرې یې عبث لاړې دزندان په دروازه کې

پخوانۍ لاپي دي څه شوې څنګه سولي ته مجبورشوې
صبرصبرچي معلوم شي سست اوټینګ په معرکه کي

دلته دانګي زلمي اورته دسپېڅلي عشق له رویه
مستقیمه لاره ګوري دایمان په تجلی کې

ستاپه مرګ پسې یې مټې له فطرته دي رانغښتي
شک دي خاوري شه دښمنه دتسل په اراده کې

# عبدالله ثاقب

عبدالله ثاقب د غزني د ناوې ولسوالۍ د زاړه کلي او سيدونکي ،پر ۱۹۷۸ز، کال دمولوي عبدالولي صاحب په کورکي نړۍ ته راغلی دی.لومړنۍ زده کړې يې له خپل پلار څخه ترلاسه کړې اومنځنۍ هغه يې په مختلفومدرسوکي ترسره کړي دي،خودنورودرسونولړۍ يې هغه مهال تم شوې چې په افغانستان کي دطالبانو اسلامي تحريک ظهوروکړ،ځکه عبدالله له پيله دهمدې غورځنګ ملګری شوی،په بيلابيلو محاذونوکي يې دجګړې په لومړيو کرښو کي برخه اخيستې اوپه ګڼوجهادي دفترونوکي يې خدمتونه کړي دي.ملاعبدالله اوس دبلوچستان ايالت په پلازمېنه کوټه کي اوسيږي ،دکورنيوستونزوله امله په خپل شخصي کاروباربوخت دی.ښاغلی عبدالله داسلامي احساس ،وينښ ضمير ،عاطفي ،ښواخلاقواوجذابي څېرې څښتن مېلمه پال ځوان دی. له ماشومتوبه يې له شعرسره مينه درلوده ،خوپه اتلس کلنۍ کي يې خپله هم دشعراو شاعرۍ په ډګرکي قدم وهل پيل کړي دي اوپه لومړي ځل يې همداالفاظ دنظم په تارپېيلي دي:

ترڅو به وي دا امتحان د مينې
کله پوره به شي ارمان د مينې

پرافغانستان دامريکاله يرغل سره چي ځينو پوهانو ! ! به استدلال کاوه چي دنړۍ مجهزځواکونه افغانستان ته راغلي دي ،پاڅون يې په وړاندي دغره سره دسرجنګولو او ځان وژلومرادف دی خودعبدالله په شان يوشمېربااحساسه شاعرانواوليکوالودپوهانو دا ستدلال برعکس په خپلوترانوغزلواوليکنوکي دمځکني واقعيت پربنسټ ديرغلګرو کوکاري ،منډي ،ژړاوي اودمجاهدينو برياوي ،غورځنګونه زخمونه او شهادتونه انځورکړل ،چي له امله يې ورځ تربلې دصليبي نيواکګروپرضددوسله وال جهادپه څېرفرهنګي اورواني مبارزه هم ګرميده اولاهم توديږي. د عبدالله تراني ، ملا فقير محمد درويش ،محمد جمعه ساجد او نورو ترانوويونکو په خوږواوازونوکي زمزمه کړي دي.



داځـــه دورخ پـټــې نـــه راپيدا خبــره نــــه ده
لانجـه د دیـــن وطـــن ده څـــه وړیا خبـره نـــه ده

پـه زوراوجبرورېي دغـه دورګیررانـــه حریت مـو
داځـــه دلـنـډ کـروزراوتـیـویـتـا خبـــره نــــه ده

چـې غـېږدالجهاد کـړی هـرچاددوی دښـمن دی
یـــــوازي دطـالـــب اودمـلا خـبـــره نـــــه ده

یـولاس کي يې ډالـربل کي چاړه ددې قصاب ده
زمـا اوسـتـادخـوښــي اورضـا خبـــره نـــه ده

ستاکوردی ستاوطن دی خونوکرغوندي بـه ګرځې
ړوندکـوڼ اوهـم بـه ګـونـګ يې دوینا خبـره نـه ده

دپلارنيکـه شـړلي دښمنـان مـوچي پرغـولي
کــــوي راتـــه ګــډادادخـنـدا خبـــره نــــه ده

دفـاع یې دلـتـه نشي عـبـدالله راځـه سنګـرتـه
ځـان نرکـړه دا لــه کـوره دښـیـرا خبـره نـه ده

ملګـــروهـــــلـئ رانـــه تـوره دبابا خفــه ده
ګورکي مرویـس اوغزنوي هم احمـــدشاه خفـه ده

ستر ګي کړئ خلاصي صليبيان در ته په غولي ګرځي
په دې الله په دې رسول رانه والله خفه ده

د اسلاميت او افغانيت ای دعوه ګيرو ورونو
ولي مو ننګ ولي غيرت ولي حيا خفه ده

دين او وطن خوز موږ هم دی راځئ غم يې وخورو
نن يې په غم ولي طالب او يا ملا خفه ده

کفار که لر دي او که بر خو موږ ته يو موټي دي
خو دلته ورور ګورئ له وروره بې معنا خفه ده

نن د بادرده بااحساسه مسلمانو ورونو
ګورئ له زړونو خوشحالي خولونه خندا خفه ده

چې زموږ تاريخ بيا خپل بچي لولي نو څه به وايي
ځکه خو حال ماضي او هم رانه سبا خفه ده

چې نالايق او لايق نه ګورو بس ځوور پسې
په دې له موږ نه هيوادوال وعبدالله خفه ده

# عرفان الله عرفاني

اوس مې هم يولاس کې توره بل کې ډال ده
دا مې فن دا مې هنر، دا مې کمال ده

له فطرته مې نفرت له غلامۍ ده
ما په سر وړينو ګټلې استقلال ده

په ما پاتې ځواب ځکه دچا نشته
ما حل کړې دهر چا دمينې سوال ده

لا مې غشي دغليم په ټټر خښ دي
ما مات کړې دهر عصر هر دجال ده

ډير سر مسته مو له زوره غور ځولي
ورشه ويې کړه پوښتنه څه يې حال ده

له جهاد او له جنګو نو ستړي نه يو
له پخوانه کلک عزم لو ړمورال ده

پرافقو را خورې سپينې سپېدې دي
د تورتم زړه کې بل کړې مومشال ده

عرفاني چا چې زموږه سيالي کړې
اوس په حال د تنزل او دزوال ده

## هسکه پګړۍ

ورکه ده لیلی د آزادۍ زمونږ
نه ښکاري په ستورو کې سپوږمۍ زمونږ

وخوړه لېوانو یې کبلۍ رانه
چاشهیده کړې ده هوسۍ زمونږ

لړاو بر تور مخي د پېوان ګرځي
نه راځي ګودرته ښاپېرۍ زمونږ

آه دا خوت زندګۍ څه شوله
نشته هغه مینه پخوانۍ زمونږ

دننګې شملې نه وینم سروباندې
څه شولې د ننګ هسکې پګړۍ زمونږ

شولو مونږ محکوم پردي حاکم پر مونږ
څوک و په جهان کې د سیالۍ زمونږ ؟

غم همېش مېلمه وي په کور کلي مو
نه دریږي او ښکې او سلګۍ زمونږ

هو دوخت خاین مو ګران وطن پلوري
خرڅه یې کړه صلحه نېکمرغۍ زمونږ

وایي عرفاني زلمو قیام وکړئ
پورته کړئ بیا توري میوندۍ زمونږ

# راځه ګلي ته

کله ناکله خوراځه کلي ته
د تورو غرونو نه میلمه کلي ته

اځه راځه دازادۍ امامه
د تکبیرو په زمزمه کلي ته

تاته ګلزار شه دا اغزني لارې
یرې ستومان راشه دمه کلي ته

عقابي سترګو کې دې ښکاري شبګیر
جانانه راوړه دا نن شپه کلي ته

ستا درا تلو لارې ښار مه ګرانه
راوړه پیغام نوې کیسه کلي ته

د هجر تورې تروږمۍ دا شنا
جوړ شه فانوس هم شه ډیوه کلي ته

تاکړې نسکورې طاغوتي لښکرې
درومه خومار نشه کلي ته

خوند به کړي دا چې له سنګره راځې
د عرفاني په بدرګه کلي ته

# عمر شاه حیدري

عمرشاه حیدري د حاجي روزي محمدزوی دزابل ولایت دشملزو ولسوالۍ دنورخانخېل دکلي او سیدونکی دی .دثورله کرغېړني کوتاه وروسته یې کورنۍ د بلوچستان ایالت مسلم باغ ته هجرت وکړ ،نوموړي دمسلم باغ دافغان مهاجروپه پنډغالي کي لومړنۍ عصري زده کړې ترسره اوبیایې دیني تعلیم ته مخه کړه ،خودمهاجرت نامساعده شرایطو یې دزده کړومخه ډب کړه اوپه ورځنیو چارو بوخت شو.حیدري صاحب داقتصادي ستونزوسره سره دسرولښکرو پرضدوخت په وخت دجهادپه ګرمومورچلونوکي برخه اخیستله اوپه مختلفو ډګرونو کي یې دشورویانواودهغوی دګوډاګیانو(خلقیانواوپرچمیانو )په وړاندي مبارزه کوله .

حیدري دمیني کور(افغانستان )ته دخوښیوراوړلوټېروهي ،دصلیبي اشغالګردښمن سره سوله خوښوته په ډاګه وایې چي دامن ډېرمنه فضاءپه سوله نه په جنګ ترلاسه کوواوسپیني توري په لاس رندان له میدانه تښتوو.

د میني کورته د خوښیو نوی رنګ راولو  
په سوله نه کیږي نورخپل امن په جنګ راولو

د وخت رندان به له میدان د حماسو تښتوو  
چي سپینې توري راسره وي آس خشنګ راولو

ښاغلی حیدري شاعراوکیسه لیکوال دی ،د شعرونو او لنډو کیسو درې مجموعې یې تیاري کړې دي، خوکوم اثریې تراوسه نه دی چاپ شوی. نوموړی اوس په خپل کلي کي ورځنۍ چاري سمبالوي. دشعرنمونې یې په لاندي ډول دي:

## د ستورو بدرګه

پرون د ښکلو کډه راغله یو دلبر ورسره
ورسره ستوري بدرګه وو یو سپین لمر ورسره
د آزادۍ لیلا د حوري په لباس پټه وه
د پیغلو پیغلو ارزوګانو جوړ لښکر ورسره
سپوږمۍ له شا ورپسي توري تروږمۍ شړلې
له هیلو ډکه ورځ یي راوسته شهر ورسره
روژه د هجر مو صبا تر عرفاته رسي
له خوښۍ ډک هلال به راولي اختر ورسره
د حماسو زلمي به راولي کاروان د هیلو
د وخت ویاړلی مجاهد محمد عمر ورسره
نور به په دې کلي کي سیورۍ د بلاوو نه وي
حیدري کړې مو ډغرې دي په سر ورسره

## غازي ملت

دا غیور غازي ملت زما د اېلېدو نه دی
تیر به شي له ځانه له ایمان د تیرېدو نه دی

زړه کي ئي لا بیا هم ولولې د افغانیت شته دی
کلکې پولادي متې ئي اوس هم د همت شته دی
یو دی سره زړونه په هیڅ رنګ د بېلیدو نه دی

وامـــي وره غليمــه د اســلام لښــکر مـــا تيرېږي نــه
خلګـو کـي متـل ده چـي پـه ډانـګ اوبـه بيليـږي نـه
واړه شــهيد خيل دي پـــه چـــل ول د غولېـدو نــه دي

درد و غــم يــي يــو دی يــو يــي غــم يــو اخترونــه دي
يـــو افغـــان ملـــت ده يـــو يـــي زړه کـــي ارمانونـــه دي
هرڅـه بـه تـرې هيرشـي خـو قـرآن د هيرېـدو نـه دی

دلتــه چـي راغلـي پــه روغ ځــان دي بيرتــه تللــي نــه
تللــي يــي غوړونــه خــو ښــکرونه يــي ګټلــي نــه
چيغــې حيــدري تــه مــو فاســد د ټينګيــدو نــه دی

## د للمي ګل یم

يو څـــاڅکی د شـــرابو يـــم لـــه جامـــه پرېـــوتلی
يوپـــام د ښـــکلو ســـترګو يـــم لـــه بامـــه پرېـــوتلی
د ســترګو پــه آينــو کــي مــي جانــان جانــان تصــوير ده
د زړه تــل تــه مــي مــېم د يــار لــه نامــه پرېــوتلی
د للمـــي للمـــي ګـــل يـــم پاکـــه ســـتا د رحمـــت تـــږی
د ژونــد بهيــر مــي هســي لــه ناکامــه پرېــوتلی
يـــو خـــوب د انديښـــمن يمـــه تعبيـــر مـــي چـــاونکړ
رڼـــو رڼـــو اوبـــو تـــه لـــه ابهامـــه پرېـــوتلی
د ژونـد قافلــه ســترې ورکــي ســتړی حيــدري يــم
يو څـــاڅکی د خـــولې مـــي لـــه هرګامـــه پرېـــوتلی

# فضل ولي ناګار

استاد فضل ولي ناګار، پر ۱۳۳۳\۱۳۳۲ل، کال کې دننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ د چارده ي کلي د ملا فضل قادر اخندزاده په علمي او روحاني کورنۍ کې زوکړی دی. لومړنۍ زده کړې یې د خپل کلي په ښوونځي کې او منځنۍ هغه یې د ایمل خان بابا لیسه کې ترسره کړې او عالي تحصیلات یې د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علوموپه پوهنځۍ کې بشپړ کړي دي. له پوهنځۍ څخه ترفراغت وروسته په ایمل خان لیسه کې د استاد په توګه پاته شوی دی. کله چې سرو لښکرو افغانستان اشغال کړ استاد ناګار یې په هماغه لومړیو کې پرضد په عملي جهاد لاس پوري کړ او کوم وخت چې یې هجرت وکړنو د هجرت په دیار (پیښور) کې یې اغېزمنو لیکنو او شعرونو خلک د شوروي وحشي پوځونو پرضد مبارزې ته هڅول.

ښاغلی ناګار فرهنګي ټولنو او شخصیتونو د الفت، اقبال، د غزل بابا او د انقلاب د شاعر په القابو ستایلی او نازولی دی.

ناګار صاحب د اسلامي انقلاب تر بریالیتوب وروسته د پیام ازادۍ راډیو مبصر او د طالبانو دواکمنۍ پرمهال د ننګرهار ورځپاڼې مسؤل مدیر پاته شوی دی، د غه راز د ننګرهار مطبعې رئیس او د ننګرهار پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځۍ د رئیس په توګه یې خوواره دنده ترسره کړې ده اوس د یادې شوې پوهنځۍ د استاد په حیث د افغان مظلوم ولس خدمت کوي او بچیان یې د علم په ګېڼه سینګاروي.

ناګار صاحب ښه عالم، مفکر، مبارز، فاضل استاد، نومیالی لیکوال او غزلبول شاعر دی، ټولني ته یې داسې خدمتونه وړاندې کړي دي چې د پوهې او ادب له ډېرو ستو یې میدان وړی دی، په تېره بیا د قلم په نوکې یې خورا نایابه حماسي، عرفاني او اصلاحي اشعار، ملي ترانې، ادبي، تاریخي، اصلاحي او فکري لیکنې لیکلې دي. ناګار په متفرق ډول زیات نه هېریدونکې فرهنګي او تعلیمي خدمتونه ترسره کړي دي.

دا هم د استاد ناګار چاپ شوي نثري او شعري اثار:



د اهغه بالاحصاردی (شعرونه )
سندريون (شعرونه )
شملې هسکي ولونه - ولونه (شعرونه )
عرفان او د پښتو ادب په لرغونې دوره کي يې څرکونه
او د سروزر و تنابونه
او ناچاپ هغه يې :
د ولسي شاعرحضرت ولي ژوند او فن
د شلمي پيړۍ دوې وروستۍ لسيزي او پښتو غزل
روښاني تصوف
ليکوالي
او ادبي کره کتنه ،او د اهم د ناگار صاحب د شعر بېلگه

## سندربول

د ننـــګ او د پـــت د کارنامو ســـندربول
زه د تکبير د زمزمو ســــــــــــندربول
ښـکيله !پــه کـړې ژمنـه څنګـه بـه شـي
د مړاو وسترګو د ليمو ســــــــــندربول
د زړه د وينو انځــــــورګرېږ منــــــه
د پرګنو د هنګامو ســـــــــــندربول
پــــه بلو ســــګر ځله لکـــه تنـــدرلګي
د يو څو تورو ، کليمو ســــــــــندربول
چـي پـه شـفق د قربـانۍ رنګـين دي
يـــم د هماغو ماښامو ســــندربول
ســوزېږ دی يو ،خــود واړه ســازه لــري
داد څرخــــي ،ګوانتانامو ســـــندربول

دزړه ابلبند تـــه ګـــوره بیـــاختلی
شـــپېلۍ پـــوکلې درموســـندربول
ناګـــاره !ســـتره یـــې دپیغـــام ډالـــۍ
دنا اېللودنغموســـــــــــــندربول

## یوه پټه خبره

خوینـدي دتهـذیب دي نوردمورپـه وروږزهیـري شـي
پرېـده چـي داټولـه دنیـاږیري ،ږیـري ږیـري شـي
مـوږه چـي پګـړۍ دسـرېتوب لـه سـره ښـکته کـړې
ستاسـولوپټه نرمـه ټوټـه ده ،زړبـه ځیـري شـي
خونـدیې پـاتي نـه وي چـي پـرده لـه رازه پورتـه وي
غـوږکي ورتـه وایـه داصـغیري چـي کبیـري شـي
چیرتـه دی مقـام دمـورولـۍ ،کبریـایې زانګـو
جـال دترقـۍ کـي دی اټکـل چـي بـه اسـیري شـي
کلـــه بـــه محموداواحمد شـــاه ورکـــره وزیـــږي
ویاړبـــه دتـــاریخ کلـــه غرغښـــتي یـــاوزیري شـــي
مینـــه ،ښـــکلا کله بـــازاري دي ،ځانتـــه حـــدلري
لـږدي اسـتدلال تـه دکمـال میرمنـي ځیـري شـي
هردزانګوټـال بـه زلـزل ګډپـه سـومنات کانـدي
چیـري کـه پیـداد «زرغـوني »غونـدي فقیـري شـي
زنـــګ حـــرص لرلـــې آینـــه ده درنځورانســـان
پـاک بـه دقـرآن پـه کوثردادمـودوخیري شـي
خیـردی کـه بـوګنیرږي دناګارلـه شـوخ قلـم ځنـي
دادخوبـــولي نـــړۍ لونـــه ده ،شـــوګیري شـــي

## دشفق پال

وړانګوتـه دلمرسـپېلني ،وربڅـي داسمان نیسـي
پـال دي پـه شـفق شـومه دم ستوري کهکشـان نیسـي
واوري دي پګړۍ –پګړۍ سپین غره له سره تاوي کړې
دابزرګـه څوکـه ،شـمله هسـکه طالبـان نیسـي
ښیسـت دجنتونو دبـوډۍ پـه ټـال راښـکته شـو
داهاردرنګونو پـاس لـه حورونـه ګرېـوان نیسـي
څاڅکي پـه اتـڼ –اتـڼ څـه مسـتي شـېبې جوړي کـا
پـرک دي دبرېښنا په خندا غیږکي ټول جهـان نیسـي
وپـه خولـه زمـاغرق –غـرق نظربـې څـه نـه مـه ګڼـه
هغه د ی کـاروان ،یوسف کوهي کـي دکنعـان نیسـي
سـرې سـکروټې ټولـه شـپه لـه سـتورو ورېدلې وي
بیـاکوم یومغـل لاردورېښـمودکاروان نیسـي
دومـره زوردشعردشـپېلۍ بـس دی اوکـه نـه لـیلا
څـک ورتـه سـرونه سـتادزلفوتورماران نیسـي
مـخ دمسـلمان دخـدای لـه نـوره سوراوسـپین اوړي
ولونـه بـاران راغـي ،دکابـل منـې ګـلان نیسـي
ښـه شـوچي دچاغونـدي کوڅـوکي رسـوانه شـولو
مخـه بورېبوکوسـره ناګـاره دبیابـان نیسـي

## دازادۍ سبا

جهادروښـانه خـط دپیغمبـر(ص)دی ،ځـئ چـي ځـو
دخـدای(ج)دازمـویني خـورډګردی ،ځـئ چـي ځـو
ماشـوم دبخارابـه ترڅوپـټ لـولي قـرآن

مؤمن ته بس همد ازنګ د خطردی ، ځئ چې ځو
راښوري په تعقيب دي منځنۍ اسيابيا
تکبيرکې دي غيبې غوندي اثردی ، ځئ چې ځو
افغانه ! په شانه ځې ، خوچې ونه خورې تيندک
حساب دګرداسلام نن ستاپه سردی ، ځئ چې ځو
دبدرمېلمانه نه دي ختلې بيااسمان ته
ملاتړدي دملکولوی لښکردی ، ځئ چې ځو
اسلام له منځه وړه شي ، ديهودوپه مشرۍ
وهلې يې اهتمام ته روس ټټردی ، ځئ چې ځو
ژوندی چې دی خښ شوی دهغه شهيدبچی
له خدايه ! پس يې ستاپه لورنظردی ، ځئ چې ځو
هرګام د ي زېړوي له رعبه ډکې هنګامې
ماڼيوکي دکفرشوروشردی ، ځئ چې ځو
داستادشومه دم نوراني کرښې دمرمۍ
دليکوسپېدوشاته سپين سهردی ، ځئ چې ځو
ختيځ کړي په «لويديځ چاقو» پرېشن دخپل ناسور
حيران دشرم داغ ته لروبردی ، ځئ چې ځو
پرمخ ځئ شاه زلمو ! دځمکې راکاږئ تناب
محشرپه هديره کې دقيصردی ، ځئ چې ځو
ناګاره ! په غزل ښاره افق دي دهيواد
په ښرک دآزادۍ دسبالمردی ، ځئ چې ځو

---------------------------

[دناګارشاعري بيلابيل مخونه ]

# فضل هادي سالک

مفتي فضل هادي (سالک) دفضل ناصرزوی دننګرهارولایت دبټي کوټ ولسوالۍ دچاردهي په کلي کې دمرحوم ملافضل قادراخندزاده په نوموتې علمي اوروحاني کورنۍ کې پیداشوی دی.لومړنۍ زده کړې یې دچاردهي ښوونځي کې ترسره کړي ، ترهجرت وروسته یې دپاکستان په مختلفو مدرسوکي له جیدو علماؤ سره ددرس نظامي مختلف علوم او فنون لوستلي دي او پر(۱۹۹۴)ز ،کال کې یې په نامتوعلمي کانون (جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک ) کې داحادیثو دوره بشپړه کړې ده.ښاغلي مفتي سالک دوفاق المدارس العربیة پاکستان څخه په عربی او اسلامي علوموکې ترازموینې وروسته دالعالمیه برې لیک ترلاسه کړی چې په ځینواسلامي هیوادونو کې داډول سند دMAیا ماسټرۍ درجه لري.

مفتي سالک صاحب ترفراغت وروسته دپیښورد مالګي منډۍ په مرکزي دارالقراء کې دمدرس په توګه پاتې شوی ،بیادننګرهارپوهنتون دطب پوهنځي داسلامي ثقافت دیپارتمنت کې په علمي کدرکې شامل شوی او دپوهنیارپه علمي رتبه یې داستاذ په صفت څوکاله دتدریسي بوختیاوو ترڅنګ اداري اوفرهنګي خدمتونه کړي دي. اوس یې دنوروتعلیمی اوفرهنګي بوختیاووسربیره په دې وروستیو(۱۴۳۴هق ربیع الاول) اکوړې کې دحقانیې دارالعلوم د دارالافتاء له رئیس مفتی سیف الله ' حقاني صیب ' سره په 'کلیة الفقه والافتاء والقضاء' کې د اسلامي فقهې تخصص ترسره کړ.

مفتي سالک دپاک احساس ،لوړخیال ،پراخي مطالعې اوسپین زړګي خاوندمینه ناک ځوان دی ،له ښایسته مودې راهیسې دمتفرقوفرهنګي اوتعلیمي خدمتونوسره څنګ کې شعراونثر لیکي ، یوه شعري ټولګه اودوه منثورناچاپ اثارلري ،دغه راز په سلګونوسیاسي ،علمي اوټولنیزي مقالې یې لیکلي اوپه بیلابیلوویبپاڼو ، ورځپاڼو ، جریدو اومجلوکې خپرې شوې دي.



# ځــــپــــه

دوینښ احساس دوینښتا به مسته ځپه راغله
دشرک کاله کې تزلزل شوغلبله راغله

چې (بت شکن )توره له تیکې نه راوویستله
دسومنات پرمات تندي باندې خوله راغله

دارادو(جمال )حریت له ټول لویدیځه غواړي
دلاهوري (اقبال) دآند دامعضله راغله

چې دګورګین مری شوه غوځه دمیرویس په توره
داکبرخان اوایوب خان ښه خاطره راغله

دپیرنګي ښکیلاک په مخکې روحاني بندونه
دخړخیبردافریدوچې پرې جرګه راغله

دوینوپورمې شولوپاتې سره کمون باندې
دلویدیځوالو چې هیوادباندې حمله راغله

ولس داورښتي کې وریت کړبشرپالې نړۍ
له لوړمورچل نه دشهید پرې جنازه راغله

افغان ولس داسلام لارکې سرښندنې کوي
دجنت لاروکې دحوروقافله راغله

دغلامۍ اواسارت ځنځیري تل مات کړي
دتاریخ باب کې دااغلې فیصله راغله

دادمنبردادمحراب دازانګوخوړلني
دسالک ګانده کې همداسې اراده راغله

# بغاوت

د ښکیلاګرو پر ضد کړی مو پاڅون دی
د برې ستوری مو ځلې او ښتون دی
قافلې مو د امید پا میرته خیژې
سپین کاروان را خوځیدلی جوړ شبخون دی
بت کده د توریر غل مې ماته کړې
د خوځښت جرس شرنګیږې سبا وون دی
چاپه زجر او جفا شپیږه را کړه
د وفا کاروان را غلی په سیحون دی
ما د غرب د پانګوالو سلام نه کاو
مونږ احراریو باطل کړی مو افسون دی
د ښکلا د آزادۍ علمبرداریم
چا تړلې مې لاسونه کوم قانون دی
د بشر د آزادۍ د مدعیانو
په نیزو باندې سوری زما مضمون دی
مانن غږ د بغاوت دی پورته کړی
په نړۍ کې مې ځای نشته سور کانون دی
ما په ویرد فلسطین کړې او ښکې توی
د البنکرې را نه تاوې دې زبون دی
د حریت لارې اغزنې دې رقیبه
مالیدلی په دې لاره خپل یون دی
مونږ مین په خپلواکۍ او قربانۍ یو
له اسلافو نه را پاتې داترون دی
د سالک شعر بخرې د توحید دې
د شرک ځاله به نړیږې او س ازمون دی

## دوطـــــــن ویـــر

نــن چــې پــه ســره اورکــې ورتیــرېږي داوطــن دی زمــا
تــوري لــوخړې تــرې جګیــرېږي داچمــن دی زمــا

داکـــــوه قـــاف دښاپیرو !دادوریښـــــمولاره
نـــړۍ پـــرې ټولـــه بلوســیرېږي داګلشـــن دی زمــا

دلتـــه پامیردلتـــه واخـــان دلتـــه ســپین غـــرولاړ دی
پـــه هنـــدوکش څلـــې رپیـــرېږي زړه خـــوړمن دی زمــا

دلتـــه چـــې زرکـــې لـــه بابښـــونه بیـــا باجونـــه اخلـــې
هوســۍ شـــرمېن نـــه ،نـــه ویریـــرېږي ســورکفن دی زمــا

هاغـــه (ناهید )هاغـــه (ملالـــه) دتـــاریخ شـــاهکارې
هرځـــای میونـــدهریو غـــړی یـــې (بت شـــکن )دی زمــا

دوخـــت چنګیزاوهلاکودوخـــت پیرنـــګ راغلـــی
ولـــس مورچـــل ورتـــه نیـــولی ولـــس ژمـــن دی زمــا

دادنـګ دنـګ غرونـه دنګـې غـاړې دتـاریخ میړونـه
غاصـب لښـکر لـه ګریبـا ن نیسـې دادښمن دی زمـا

پـــاخیږه روحـــه د(ابـــدال)دپانې پـــت غـــزاده
(شـــاه اولیاء )راپاڅیـــدلی لـــه مـــدفن دی زمــا

ســربڼ ،غرغښت اوبیټ نیکـه لاس پـه دعـا دې تاتـه
امیرکروړچـــې نخښـــه کـــړی میـــرڅمن دی زمــا

ستاشـــاهکارونه ،یادګارونـــه اوخـــوږې خـــاطرې
دســـالک زړه ورتـــه پســـخیږي کـــاراغزن دی زمــا

# محمدیونس خالص بابا(رح)

مولوي محمد یونس خالص (رح) پر ۱۲۹۸ل، مطابق ۱۹۲۰ز، کال دننګرهار ولایت دخوګیاڼیو ولسوالۍ دشیرزاد و د سیمي دګندمک دقاضي په کلي کې دمولوي عبدالاکبر په متدینه، علمي او جهادي کورنۍ کي زیږیدلی دی. ابتدایي دیني زده کړې یې دخپل عالم او مجاهد پلار څخه پیل کړي او د پلار تر وفات وروسته یې پاته لومړنۍ دیني زده کړي له خپل ماما مولوي عبدالرزاق او دخپلي سیمي دنورو عالمانو څخه ترلاسه کړي دي. دلوړو زده کړو لپاره یې دکور کلي څخه لیري په هیوادکي دننه او بهر مختلفو سیمو ته سفرونه کړي، دنامتو عالمانو څخه یې دبېلابیلو فنونو زده کړې ترلاسه کړي او دحدیثو (لویه) دوره یې دا کوړخټک په حقانیه مدرسه کي کړې ده.

مولوي محمد یونس خالص (رح) د دیني علومو له فراغت څخه وروسته پر ۱۳۲۰ل، کال هیواد ته راستون شو، د تدریس، دعوت او امامت د عظیمو دندو د ترسره کولو سربېره یې پراخ علمي، دعوتي، سیاسی او فرهنګي خدمتونه ترسره کړل. دبېلګې په توګه دکابل په عربي دارالعلوم او دننګرهار د ملکیار هوتک په لېسه کي د استاد او داعي او دپیام حق مجلې او وړانګي ورځپاڼي دمسؤل مدیر په حیث پاته شوی دی.

په ۱۳۵۲ل، کال چي داود خان کودتا وکړه کمونستانو په تېره پرچمیانو ته یې زیات واک ورکړ، هغوی اسلام او هیواد ته دژمنو مبارزینو نیولو ته لومړیتوب ورکړ، په کابل، ننګرهار، مزار، کندوز او..... کي یې په سلهاوو استادان او محصلین بندیان او شهیدان کړل. کمونستانو د راوانباد خالص بابا مشرزوی (مولوي محمد نسیم عابد) چي دمزار په اسدیه مدرسه کي نومیالی استاذ لومړی زندان ته واچاوه او بیا یې شهید کړ، دوی د بابا د نیولو په لټه کي هم وو، شپه او ورځ یې پرځان یوه کړې وه، چي بابا هم دزندان دوحشي او کرغیړنو پنجو مېلمه کړي، خو ځوا کمن څښتن تعالی نه یوازي دا چي بابا ترې خلاص کړ، بلکي دهجرت پراخه لاریې ورته پرانستله. بابا پر ۱۳۵۴ل، کال پېښور ته هجرت وکړ، هلته یې دمهاجرینو او رنو سره دکمونیزم دکرغیړنې ایډیالوژۍ سره دمبارزې مختلفي لاري چاري په کار واچولې، ترڅو خپل ویاړلي هیواد او ګران ولس ته دمارکسیزم له لوخړو او بوینو پدیدو څخه نجات ورکړي.

د۱۳۵۷ل، دثورد کود تا څخه وروسته خالص بابا په وسله وال جهاد لاس پوري کړ، خو پر ۱۳۵۸ل ،کال چې عملا شوروي يرغلګرو افغانستان اشغال کړاو خپل لاسپوڅي يې دواک پرګدۍ نصب کړل. بابا د شوري وحشي لښکرو او داخلي کمونستانو پرضد په خپله هم دجهاد ګرم ډګر ته ولاړ، لومړی يې د ننګرهار په خوګيانيو او لوي ولي ناوه کي بيا يې په توره بوړه (اګام )کي خپل جهادي مرکز پرانيست. مولوي خالص صاحب او ملګرويې دتوري بوړي د مشهور مورچل او دهيواد له نورو سنګرونو څخه داسلام او هيواد د غليمانو په وړاندي دکمونستي وروستي رژيم ترنسکوريد و پوري اتلواله مبارزه وکړه. دخالص بابا په مشرتوب «اسلامي حزب» هم دنورو مشهورو جهادي تنظيمونو په څېر دهيواد په ګوټ ګوټ کي غښتلي قوماندانان او غونډونه درلودل. په ۱۳۷۱ل، کال کي چي کمونست رژيم چپه شو او مجاهدين پرهيواد مسلط او خپل حکومت يې جوړ کړ، مولوي صاحب په شخصي توګه کومه دنده نه پکي درلوده ،خود ګوند مربوط ځينو اشخاصو يې دخپل تنظيم په استازيتوب ونډه پکي لرله. وروسته چي دځينو تنظيمونو او قوماندانانو ترمنځ خپلمنځي اخ وډب اوج ته ورسيد او په غبرګون کي يې پر ۱۳۷۳ل، کال دطالبانو اسلامي تحريک دنا امنيو دمخنيوي او داسلامي نظام دحاکميت په موخه تأسيس شو ،مرحوم خالص صاحب يې ملاتړ وکړ، حتی زياتره قوماندانان يې دتحريک سره يوځای شول.

په ۱۳۸۰ل، کال کي چي امريکا او ملګرو يې پر افغانستان يرغل وکړ، خالص بابا يې پرضد دجهاد اعلان وکړ په داسي حال کي چي په دغه وخت کي دعمر دزياتوالي له امله ډير کمزوری او ناروغ هم ؤ. دجهاد تر اعلان وروسته يې کلی پرېښود او کوم نامعلوم ځای ته يې هجرت وکړ. دعلم او ادب لمر ،دتوري او قلم اتل (خالص بابا ) د۱۳۸۵ل، دچنګاښ په مياشت کي له دې فاني نړۍ څخه ودارالبقاء ته وکوچيد. انالله وانااليه راجعون !

داروانښاد خالص بابا دمنظوموا ومنثورو ،علمي او ادبي اثارونو مونه او دمنظوم کلام نمونې يې په لاندي کرښو کي وړاندي کوو:

ليکلي اثار يې: ديني ملغلري ،رمضانيه، دحج لارښوونکی، روح الاجتماع، اسلامي روح ،شرح عقيدة الطحاويه ،داسلامي عالم نن او پرون ،عقل ،تقليد او دنيوي ګټې وټې ،پښتو شرح العقيدة الطحاويه، زه څوک يم دڅه لپاره مبارزه کوم.

شعري ټولګې يې: خوږو ته خوږه او ترخو ته ترخه ،تورزړو ته يم توره او سپين زړو ته يم سپينه ،ژوندي اشعار ،دانې او دامونه ،

ژباړلي آثاريې: اسلام دضعيفو پوهانو او ناپوهو ځوانانو ترمنځ ،دين او انساني تمدن ،او دفي ظلال القرآن ددويمې سيپارې پښتوژباړه.

## ماولوله اشنا

ماولوله اشنا چې څومره ښکلې رساله يم
خوږولره خوږه يم او ترخو لره ترخه يم

ما ولوله اشنا زه يوه کرښه دوحدت يم
سپېڅلي مسلمان ته ترانه د شجاعت يم
دعوت يم نصيحت يمه رڼا دحقيقت يم
رښتيا که درته وايم دزخمي زړونو شربت يم

ظالم ته بس دزهرو نه يوه ډکه پياله يم
ماولوله اشنا څومره عجيبه رساله يم

ماولوله اشنا که حقيقت په سترګو وينې
زما په تورو کرښو کې پرتې دي دزړه وينې
په تورو تورو توريو کې کوم خبرې سپينې
په سپينو پرې کوم دظالمو دپښو سپينې

نو توروته يم توره او د سپينو فيصله يم
خوږولره خوږه يم او ترخولره ترخه يم

ماولوله اشنا چې درته پته شي معلومه
نن اينښې ده کافرومسلمان ته دچل لومه

معلوم شي دظالمو حکومت به وي تر کومه؟
ترڅو به دعقاب تمه کوي خلک له بومه؟

په داسې ناخبره مسلمانو حواله یم
ماولوله اشناچې څومره ښکلې رساله یم

ما ولوله اشنا دنبي خیل سره شه مل
یو لاس شئ په سره توره کړئ بهر له کوره غل
دوی غواړي چې اسلام کړي په مادي شکل بدل
قرآن کړي دملي سرود دسیوري لاندې دل

دداسې منافقو رسوا کنه ښه وسله یم
یوبل ته مې خپره کړئ څومره ښکلې رساله یم

## راودانګئ ځوانانو!

راودانګئ ځوانانو چې راغلی امتحان دی
هیواد کې موغزاده، جنګ دکفر ودایمان دی
دخدای اودشیطان بندګان نن سره بېلیږي
چې څوک دی مسلمان، څوک دنفاق په لار روان دی
دخولې په تش ایمان کې نجات نشته له عذابه
بچ شوی دی هغه، چاچې ورکړی امتحان دی
بیرغ دپاک اسلام به شي، اوچت ټوله نړې کې
نن بیالکه پخوا متفق شوي مسلمان دی
قربان شه له اسلامه، چې قربان درنه جهان شي
داحکم معلوم شوی له حدیث اوله قرآن دی

يو ځوورځې دعيش يې كه نصيب شي څه پرواكه
انجام دكافرانو خومعلوم دی، چې نېران شي
راودانګئ پـه نـره اوځوانـانو ! نن مو واردی
بيرغ زمونږه لاس كې دنبي اخرزمان دی
الحاددی، كه نفاق دی، ددې ټولوبوتان مات كړئ
باطل تـه ځواب وركړئ، كه فرعون كه هامان دی
چې سراومال دخدای لاره كې نږدي څه مسلم دی
چې هر څه نبي خيله ، خدای ته وركړي مسلمان دی

## دحقيقت ، خيال اوخوب ترمنځ

دنـارنج دګـل ميلـه وه، زه يـې هـم وم وربللـی
اديبـانو كـې ملګـرو، زه لاهـم ومـه شـمېرلی

دېرپـه مينـه ورروان شـوم، په جـاموكې نـه ځايدمـه
چې بـه زه هـم ورسـره شـم، دوی محفـل جـوړكړی ښـكلی

پسـرلی دی خوشـحالي ده، زېـړ ګلونـه غوړيـدلي
بلــبلان وايــي ســندرې، بوراګل تــه نښېــدلی

هلتـه ګـورم دبـاغ كـونج كې، ببـر سـری بنـده ناسـت دی
مـاويلي دابـه څـوک وي، ورروان شـوم غلـی غلـی

ګـورم ناسـته ده تورسـرې، له كـوترې نـه اوتـره
سرسـرتور وربـل يـې ژړ دی اوګريـوان يـې دی څيرلـی

حق حېران شوم چې، داڅوک ده يو قدم شومه وروړاندې
يـو ماشـوم يـې دی پـه غېـږ كـې ، پـه سـروويـنو لمبېـدلی



نـا ببـره مــې کـړه کریغــه، چې داخـوک دی اوداولــې؟
داماشـــوم وایـــه دچـادی اوداکـــوم ظـــالم وژلـــی؟

بنیـــادم یـــې کـــه شیشـــکه، دلته کلـــه یـــې راغلـــې؟
څه درشوي، څه دې کړي، چې دې پرېښی کور اوکلی!

ورویـې سترګې کـړې راپورتـه، وی چې زه خوکـابلۍ یـم
دغــــه زوی مومجاهدو ، پـــــه راکټـــو دی ویشـــــتلی

ورور، څښتن اومشرزوی مې، هلته شول دخاورو لاندې
دایوڅــــــوورځې دمخـــــــه، زمونږکوردی نړېـــــدلی

احساساتومې اورواخېست، لاس مې پورته کړواسمان ته
مـاوی خدایـه تـه یـې هـلاک کړې، چـې داکورچـانړولی

دی وی چـپ شـه"   نبـي خیلـه"ښـبرامه کـړه ، مجاهـدو
لـــه روســـانو پـــه ســـروونو داهېـــواد دی راګټلـــی

دګـــل خـــواکې خـــواغزي وي، خزانـــې ســره ښـــاماروي
دامتـــل مـــې څوځوځلې، لـــه مشـــرانو اورېـــدلی

ادیبانوتـه مـې مـخ کړو ، مـاوی وخـت دمیلـې نـه دی
دښمن اوس هم لاس پـه کـاردی، اوهېواد دی غـم لړلـی

چې مـې سترګې رارڼـې کړې، هـاتف غـږ راباندې وکـړ
"نبي خیلـه"لمـونځ   قضاشـو ، عجیبه خوب دی لیـدلی





## دشهیدانو یاد

بیـــا مې چلېـــد لی نـــوی روح دی پـــه بـــد ن کـــې
شـــپه مـــې تېـــره کړې، د ســـرو ګلو پـــه دامـــن کـــې

سرې وینې روانې وې، دمښـکو ښـکلی بوی پکې
ښـکلی ننـد ارې وې، نظـارې وې ښـکلې بـڼ کـې

اخـــوا د شیدو ، شهدو ، شـــرابو او اوبوویـــالې
دې خـــوا د مرغـــانو اوازونـــه ووچمـــن کـــې

هلتـــه د کـــوثر ویالـــه روانـــه تکـــه ســـپینه وه
نورخلـک راتلـل ورتـه نېکـان چـې وکفـن کـې

ســـروجاموکې راغلـه، یوه ډلـه ګلابـي غونچـه
زه شـومه حیـران چـې داجـامې دي، دچـاتن کـې

غبرګ شو "خالصه !"مونږه ستایو شهیدان بچي
ټـول شـــهیدان تاتـــه، انتظاریو ، دې وطـــن کـــې

سرمې چې راپورته کړو ، تودې اوښکې مې تویې شوې
خدایه ! ماشریک کړې هم، ددوی سره رفتن کې

-----------------------------------------------------------

[پوهنمل زاهدي :خالص بابا دابدیت پرلوراود خالص باباداني اودامونه شعري ټولګه ]

# محمد حسین مستعد

شهید ملا محمد حسین مستسعد د مرحوم مولوي محمد فیض الحق صاحب زوي ،په ۱۳۹۳هق ،مطابق ۱۹۷۲ز ،کال کي دزابل ولایت دشملزو ولسوالی دنسوزو په کلي کي په یوه جهادي او علمي کورنۍ کي زیږیدلی دی. لومړنۍ عصري او دیني زدکړي له خپل پلار او مشرورور څخه ترلاسه کړي او پر ۱۹۹۳ز ،کال یې دبلوچستان ایالت مرکزکوټه کي ددیني علومو دزدکړي ترڅنګ دګورنرموسی کالج لوستی دی.

پر۱۹۹۴ز کال چي دطالبانو اسلامي غورځنګ دشراوفساد پرضد قیام وکړ، مستسعد تکمیل اوفراغت ته نژدې زده کړي پرېښودلې او دهمدې تحریک یوفعال غړی شو. شهید مستسعد دافغانستان د اسلامي امارت دواکمنۍ پرمهال دعلوموا کاډمۍ د رئیس او داداره امور د مرستیال په توګه دندي ترسره کړي دي.اروا ښاد مستسعد دعالي ارمان ،روڼ فکر ،ټینګ عزم ،غښتلي استعداد ،پراخي مطالعې اوژوري پوهي څښتن مدبرشخصیت ؤ. په پښتو ،دري ،عربي ،اردو او انګریزي ژبو یې لیک اولوست کولای شوای.که له یوې خوا دیني او عصري علومو عالم ؤ ،نوبل طرفته بیا یو هڅاند مؤرخ ،تکړه لیکوال ،منصف څېړونکی او ښه شاعر ؤ ،په بیلا بیلو فورمونو کي یې ازاداو قافیه وال شعرونه پنځولي دي ،په سونو سیاسي ،تاریخي او اجتماعي مقالې ،ادبي او طنزي لیکني اولنډې کیسې یې لیکلي دي او په ځانګړې توګه یې لاندي چاپ او ناچاپ اثار یادولای شو.

چاپ:د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله دژوندانه بیلا بېل اړخونه ،
د سنګرطالبه مبارکۍ ته به درځم
شپېلۍ مي مه ماتوئ (شعري ټولګه )
او دعلامه رشاد د تود وو ینو حمام افغانستان شو(شعري غونډ ) سریزه اوزیاتونه.
ناچاپ:طالبان په افغانستان کي له راشده خلافته تر اسلامي امارته
اسلامي خلافت ،
اصحاب صفه،
ژوندۍ خاطرې ،
اسلام اونوی ساینس ،
متفرقي مقالې،



لنډي کيسې

او يوه شعري مجموعه.

شهيد مستسعد د متفرقو فرهنګي هڅو څخه علاوه د توکل په نوم ديوې ادبي ،علمي او جهادي مجلې د مؤسيس او چلونکي او د خير جليس علمي ټولني د تأسيس وياړ هم لري.

ار وابښاد شهيد مستسعد د فرهنګي جهاد سربېره د عملي و سلوال جهاد مورچل هم ګرم ساته ،د امريکايې او.....ښکېلاکګرو ځواکونو پرضد يې د دين او وطن په دفاع کې نه ستړي کيدونکي هلي ځلي کولې ،خپل عالي هدف (اعلاء کلمة الله ،د الله تعالی رضاء ،خپلواکي او د اسلامي نظام استحکام )ته د رسيدو په لارکي جسماني او رواني ځوراو ستړيا ،د مادي شتمنيو ښندلو او أن ځان ځارولو ته تيارؤ. هوکه په نظامي ډګرکي يې د دين او پت ساتني په موخه له غليم سره ټټر واهه ،نو په فرهنګي ميدان کي يې بيا د ښمن له خوا پيل شوي کلتوري يرغل او نفسياتي پروپاګند پرضد په ژبه او قلم اغيزمنه مبارزه کوله.په خواشينۍ سره چي د توري او قلم ياد شوي اتل «مستسعد شهيد»د ۱۴۲۸هق ،د رجب پر۹مه نيټه چي د ۲۰۰۷ز ،د جولايې له ۲۲ مي سره سمون خوري د زابل ولايت د شملزوولسوالۍ د بازو په کلي کي د امريکايې يرغلګرو سره د مخامخ پنځه ساعته نښتي په پايله کي د شهادت لوړمقام ته ورسيد.انالله و انا اليه راجعون !

داهم تاسي او د شهيد مستسعد (رح )د منظوم او منثور کلام بېلګې:

## زما قلم چيغي وهي !

هغه غواړي کوم څېړونکی ،مؤرخ ياژورناليست پيدا کړي تر څو د ميرويس نيکه د غورځنګونو ،د احمد شاه بابا د سوبو ،د غازي محمد اکبرخان ،عبدالله خان اڅکزي ،ملامومن غلجي ،عبدالباقي مجددي ،د ملامشک عالم د غزاګانو ،غازي محمد جانخان ،ميرمسجدي خان او نورو د پرديو په وړاندي د پيوستون د غازي محمد ايوب خان د فتوحاتو د ملالۍ د غيرت او جرأت يوه کيسه ورباندي وليکي.

هغه غواړي چي د ده په وسيله کوم دوينښ وجدان خاوند ،کوم د خپلو نيکونو ريښتوني وارث کوم د هيواد د مور اصيل بچی ،کوم د خپل دين او ناموس پرسرننګ کونکی زلمی ،کوم له خپل راتلونکي تاريخ نه د شرم او حياکوونکی



مشرپیداشي دامیرکروړحماسه ،دبابا هوتک ناره ،دغازي محمداکبرخان اونایب امین الله لوګري دغوځنګونوکیسه ،دایوب خان معرکه اودملالۍ ټپه ورباندي ولیکي.

زماقلم دیو داسي رتل شوي یتیم په څېر دی چي تربورانوله خپله کوره شړلی وي اوچیرته دکوم پاڼ بېخ ته ناست دکوم مرستندوی لاري څاري ....

زماقلم دهغه لارورکي مسافرپه شان دی چي په کومه لویه دښته کي لارورنه ورکه وي ،په سخت توپان اوسیلۍ کي راګیروي ،لاس ترزني ،شنوزوهلی ،په غمونوکي ډوب اودوحشي ژویوله ډاره دخپل نامعلوم برخلیک په وېره کي نغښتی دکوم غارپه خوله کي دکوم لارښوددراتلوپه هیله دخپل ژوندانه وروستۍ شېبې شماري.

زماقلم چیغي وهي چي خپل مسؤلیت اداکړي...زماقلم کریږي وهي چي خپل رسالت ترسره کړي...زماقلم لېوال دی چي راتلونکونسلونوته دخپل وحشي دوران څوډارونکي صحنې څولړزونکي انځورونه واستوي...ځکه دااوس قلم اودنن ګوتي به سباته نه وي پاتي ،ځکه نوګوتي قلم ته په ژړاشوې «خط به باقي وي موږبه توري خاوري یونه»

## دبلال کړیکه

اهریمن خوښ دی چي نن زما ښکلی جوهر رانه وړي
واک مي په زور،توره په فریب،دین په منتر رانه وړي
د سره ښامار له شرمیدلې ماتې ونه شرمېد
کفر یوشوی دی اسلام مو په اشر رانه وړي
له واتیکان نه راستون شوي یو زاړه لاس پوځي
چاته ویل: د حسین سر به نن شمر رانه وړي
منحوس صلیب مو کور او کلی نن په سر اخیستی
زموږ عقیده د مسیحا د ژوند نظر رانه وړي
د بدلمنو و سنګارته یې کورسونه جوړکړل
حیاد پیغلو مو څپې او شال د سر رانه وړي
څو مره احمق دی زما له دینه ناخبره غلیم

د دین په تور د پلار نیکه ښکلی هنر رانه وړي
غلیم له وخته دې ته غلی دی چې لاس یی بر شي
په نوم د سولې راځي زما د لاس خنجر رانه وړي
د آزادۍ طلایي وړانګو ژرسئ وځلیږئ !
د تورو شپو لښکر راغلی روڼ سحر رانه وړي
د بابا توري وچلیږه ایماني جګړه ده
د پت کیسه ده پخوانی نوم د ټبر رانه وړي
د بلال کړیکه د درد نه ده د ایمان نښه ده
احد احد یی عقیده اثر د شر رانه وړي
د احرار چیغې د هیواد په غرو کې و آزانګه
غلیم و تیښتې ته چمتو دی اوس روغ سر رانه وړي

## خپلواکي

نه په اوښکو څه باور شته نه په اوښکو ودانیږي
نه په چیغو راستنیږي ، نه په چیغو پیدا کیږي
خپلواکي کیسه د برم آزادي د عزم نوم دی
غلامي کي د خپل برم کیسه بل چا ته نه کیږي
په ځنځیر تړلي چا دي کوم محفل ته رابللي
ځنځیرونه به خلاص نشي ځنځیرونه شلول کیږي
چاویل چي غلیم هم یو وخت پر موږ دی رحمېدلی
رحم تل غلیم نه تښتي ، غلیم رحم نه شرمیږي
د نیکه ګټه په توره د بابا فتحه په توره
میرویس کله پخلا کیږي احمد کله راستنیږي
اکبرخان مي رانه ورک دی ایوب خان مي رانه تللی

نه میوند کي شور او زوږ شته نه کابل بیا راخوځیږي
نه ټپه شته د ملالۍ نه ناهید د تکبیر ږغ کړي
خدایه مه راولي بد وخت چي به خوندې پردۍ کیږي
ګل غوټۍ مي خدایه څه شوه هم غازي اديږ ده ورکه
غوټۍ تل ګلان ګلان شي ګلان کله غوټۍ کیږي
ځوانیمرګه یاره واوره د ځوانۍ وار به دي اخلم
که نړۍ رانه بیلیږي ، که نړۍ راته یو کیږي
لیږي تللو مسا پرو د ژوندون مزه همداده
چي شرنګا د زولنو نه دي غلیم بیزاره کیږي
دابه کیږي هابه کیږي خو د توري یو پرک غواړي
چي هیواد یوځل آزاد شي ، هیواد بیرته ودانیږي
داحرار قلمه څارشم تر تیره توره کم نه یې
هم مي غم له زړه نه باسي هم غلیم باندي سوځیږي

## خبر

چاویل چي پرون بیادهغه ستر میوند په خواکي
دهلمند دسیند په څنګ کي دجروم ستره بیدیاکي
دداورد پلاز په چم کي دایوب دپلونوخواته
دحسن میمندي کورکي داشرف په قتل ګاه کي
دملالۍ او سرداري درزمونو په ډګرکي
دحبان په مدرسه کي اودبست ستره کلاکي
کړوسی دمکناټونو او لمسي دکیوناري
په ګرځن میدان راټول وودهلمند په لوصحراکي
ورته دهغه چاووچي پیړۍ پخوا په تیښته

تښتیدلي ،لـه دې ځایـه دغرمـې ګرمـه هـواکي
یو د شنو سترګو عسکر په بیړه بیړه راروان ؤ
ترڅو توغ د خپل هیوادورپوي زموږ په فضاکي
قهرمان زموږ د قرن له حجرې نه پرې وروږغ کړي
چي احرار دلته ژوندي وي شئ به مات څلورم پلاکي

## شپېلۍ مې مه ماتوئ !

شپیلۍ مې مه ماتوئ !
دا مې د خوږ بدن د تیر وخت حماسې ږغوي
دا د وختونو د اتل یوه ویرنه وايي
د زخمي شوي ، خو ژوندي زړګي د هیلو آواز
د طوفانونو په سیلۍ کي چي له هرې خوا نه
زما د غربت دغه جونګړه د غضب په کاڼو
په یوځل نه په څو څو ځله ولي
غواړي چي نه ږغیږم
زه مې د برم کیسه هیره کړمه
زه مې د تیروخت د ویاړونو نکل
په تورو شپوکي د نغري په خواکي
وکوم ماشوم بچي ته ونه کړمه
زه به دانه وایم چي زه یو وخت کي
د دې نړۍ د اتلانو د کتار غړی وم
زما له هیبته ! د سکندر لښکرې وړپېدې
زماله همته ! د چنګیز لښکرې ولړزیدې

زه په آسیا کې د جلال او کمال ننبه وم
زما نیکونو به په واز کومي په ویاړ دا ویل:
له ما اتل نشته
زه به نو اوس نوره توبه کاږمه
ها د نړۍ د استعمار د غلامۍ له ګناه
چې ما هیڅکله په ځان نه منله
دا خو لاڅه کړې مابه کور د برنس وسوځاوو
مابه مکار او مستکبر مکناټن
د نړۍ خور لښکر له مینځه لاس تړلی بوته
ماد نړۍ د مغرورانو د لښکرو جوپې
په کانو پوپناه کړې
زه به توبه کاږمه
زه د میوند د ډګر هغه ګناهکار زلمی یم
چې زما د توري ځلا ټوله نړۍ هیښ هیښ کړله
په څوګړیو بیخي نیمه ورځ کې
ما د نړۍ د اتل پښې ماتې کړې
زما د میوند هغه ملاله به اوس
له خپله سره ها سورشال غورزوي
هاغه چې دې د سترمیوند پرډګر
په لوړه چیغه چاته دا سې ویل
ته په میوندکې ځان شهید کړه
زه به سورشال ستا پرزیارت وغوړومه
ها ملالۍ به نور بیا هغه ټپې نه ږغوي
هغه به نور د شهادت لپاره

ځوانان د ننګ ډګر ته نه رابلي
نور به د ننګ او د پیغور هغه زاړه وَیونه
هغه د توري او د جنګ ، ها میړني ویاړونه
زموږ د کورګي د ستر قاموس له مینځه و ایستل شي
او ملالۍ به د ګناه د کفارې په توګه
ونړیوالو ته دتل پاتي توبې په توګه
ها پاورونکې ټپه
ها دویاړونو نغمه
ها د بري قومانده
نوره له خولې اچوي
نور به شهید زما د ترویزم داعي
اتل غازي د نړیوالو یاغي
په نوي نوم او نوی راګ یادوي
هو ! زه هغه یم او همدامي ګناه
چي پر نړۍ یو سور ښامار ګرزیدی
په وازه خوله پر هر دیار ګرزیدی
نه چا د بم په زور شړلاي شولو
نه یي ټوپک باندي ویشتلاي شولو
نه یي داتمه وه چي وبه ګرزي
نه یي خپل ځان ترې پټولاي شولو
ما د خپل رب او خپل ایمان په توکل
د خپلواکي او استقلال په تکل
د میړنو پلرو ویاړمن تاریخ مو
تکرار اوو په هرګام او هر پل

هو ! زه فاتح شومه يو داسي فاتح
چي نه مي نوم اونه نښان وګاټه
نه مي زخمونه چا پټې ورکړله
نه مي خپل کور کلی او ځان وګاټه
له سره ښاماره مي نرۍ خلاصه کړه
بس ما ايله ځيري ګريوان وګاټه
د هوسونو او قدرت مرېيانو
زما اتلواله په اوبو لاهو کړه
زما د ګاونډ د حريصانو ټولۍ
زما د کور د بدبختانو غدۍ
زما کلی رنګ کړ زما يي کور په کنډواله بدل کړ
زما د کلي د عزت ، ناموس بازار ولګيد
زما ټاټوبی د يتيم ، کونډې انځور وګرزيد
زه نور لوټلی او بې وزله شنوز وتلی غوندي
لکه لار ورکی مساپر چي د سيليو په يو غټ توپان کي
چيري يو غار کي د خلاصون په تمه
په ناهيليو لاس تر زنې ناست وي
له ما ژړا او خندا ورکه وه په ځان حيران وم
زه پر اولاد ، مال او ناموس او پر ايمان حيران وم
بيا يوه ورځ او په ناڅاپه ډول
زما له غربوه ، زماله درده ، زماله بدې ورځې
زما د افغاني همت د وينو تيلو
زما د ايمان په اور ډيوه بله کړه
زما د ختين جومات په څنګ کي له ها خړې حجرې

د رڼاګانو يو کاروان تيار شو
په قرآني ګيڼو ښائسته زلموټو
لکه د زاڼو کتارونه جوړ کړل
لکه غاټول په يوه سپيره بيدياکي
په ټوکيدو يي ګلشنونه جوړ کړل
کاروان مو خپل ، ساروان مو خپل د نيکمرغۍ په هيله
د خپل ويجاړ هيواد د بيرته آبادۍ په هيله
موټې مو ښځوهلې څو چي غداران وشړو
زما د ګټلي وياړ پلورونکي خائنان وشړو
دا د کور غل او د بل مل ناځوانه
دا ورانوونکي د کابل ناځوانه
دا په نيتونو او عمل ناځوانه
نور په دې کلي او دې کور د پاتيدلو نه و
نور د شهيد ملت له خوا هيڅ دبخښلو نه و
نور دا لوچه زموږ د چم د اوسيدلونه و
د سره ښامار و غلامانو ته يي لاس ورکړ
و پرزښځدلي کمونستې ته يي بيا آس ورکړ
د غليمانو لاس وهنو ته يي پاس ورکړ
کاروان روان و و او رڼايي زياتيد له پسې
د ابابيل غوندي په شګويي پيلان شړلو
چيرته چي ولاړ په هغه ځاي به يي ګلان شيندلو
د تورتمونو د نړۍ په زړه لرزه ګډه شوه
چيغې شوې، شورشو او غوغا جوړه شوه
د شو پر کو په ټولي کې واويلا جوړه شوه

د رڼاګانو په لیدو پتنګان وموسیدل
د قربانۍ په تکل ټول مؤمنان وخوځیدل
لړۍ لړۍ شوه نړۍ
د تورتمونو لړۍ
د رڼاګانو لړۍ
د وحشتونو لړۍ
د قربانیانو لړۍ
تیاره اوس خوځي او رڼا ورکوي
شمع رپیږي پتنګان غواړي
پتنګ مجرم شولو د شمع په ننګ
رڼا تیاره دواړه اخته شول په جنګ
نړۍ تیاره شوه د رڼاځاي شو تنګ
د تورو شپو په ترمږو کي زه پاشلي ستوري
راټولومه ورنه لمر جوړوم
په چیغو چیغو هلته دلته ولاړم
زه مي د ورک کاروان رهبر لټوم
د کوم طور غره پر سر د نور په هیله
د رڼاګانو سر لښکر لټوم
زه د شپیلۍ په زړه غوني ږغ کي
د پلار نیکه د ویاړ هنر لټوم
شپیلۍ مي مه ماتوئ !
شپیلۍ مي مه ماتوئ !

---

شپېلۍ مي مه ماتوۍ اود سنګرطالبه مبارکۍ ته به درځم

# محمدرسول وطن مل

شهید مولوي محمدرسول وطن مل دحاجي دین محمدزوی پر ۱۳۵۸ل ،کال دپکتیاولایت دجاني خیلو ولسوالۍ کي زیږیدلی دی. لومړنۍاومنځنۍ دیني زدکړې یې دخوست اوپکتیا ولایتونوڅخه علاوه دقبایلي سیموپه مختلفو مدرسو کي سرته رسولي دي اولویه (حدیثو ) دوره یې پر ۱۳۸۱ لمریز کال دخیبرپښتونخوا ایالت هنګوکي په سراج الاسلام کاهي مدرسه کي ترسره کړې ده.

شهیدوطن مل صاحب یوکال پیښور ښارکي په یوه دیني مدرسه کي تدریس کړی دی ،وروسته یې دجهادګرمومورچلونوته دانګلي دکندهار ،اروزګان ،زابل ،هلمند ،خوست او....په بیلابیلوسیموکي یې دیونومیالي اومخلص مجاهد په توګه جهادي فعالیتونه ترسره کړي دي اوپه ځانګړې توګه دخوست ولایت دموسی خیلوولسوالۍ دجهادي – نظامي چارومسؤل پاته شوی دی.

خدای بخښلی وطن مل دلوړجرئت ،پاک ارمان ،ژورفکر ،ښایسته اخلاقوخاوندښکلی ځوان و،که په یوځي ډګرکي یې داسلام اوهیوادپردښمنانوکارنده ګوزارونه کول ، نوپه فکري اورواني (نفسیاتي )میدان کي یې بیاپه ژبه ترتوري اغیزمنه مبارزه کوله ،دغلیم زبون حالت یې اعلاناوه ،دراتلونکي څخه یې ډاراوه ،دمجاهدینو حیرانونکي کارنامې اوخبري یې ورته بربښولې:ببره ږیره ،شخ بریتونه ،بریدونه ،کمینونه ،ګوزارونه ،دغلیم چیغي اوفریادونه ،دغازي جانان بریاوي اوشهادتونه یې په ښکلي اندازدشعرپه ظریفه ژبه ترسیمول.وطن مل له ډیره وخته شعرلیکه په سوونوشعرونه اوترانې یې لیکلي اوځیني یې دترنم شهکاروپخپلواغیزمنوږغونوکي لارنګیني کړي دي. تردمګړیه دشهیدوطن مل کومه منظومه ټولګه نه ده چاپ شوې خوکه تیت وپرک شعرونه یې راټول شي ښایې تریوې مجموعې زیات شي.

شهیدوطنمل د ۲۰۰۹ز،دمئ پر۲۰مه نیټه دخوست د موسی خیلوولسوالۍ دڅپري په کلي کي له امریکایې نیواکګروسره دیوې مخامخ نښتي په پایله کي دشهادت لوړمقام ته ورسید.انالله وانا الیه راجعون

دا هم دشهیدوطن مل دسپېڅلي احساس اولالهانده فکرڅومنظومي نمونې :

## وه ګرانه غازي زلمیه

ډیر کړاوونـــه تکلیفونـــه بـــه دي مـــل وي
وه ګرانـه غـازي زلمیـه هم بـه ستړیاوې دمنـزل وي

ګرانـــه کـــه شـــو شـــو ســـختې خـــوارۍ وي
دغـــــه الهـــــام الهـــــام دازادۍ وي
تـــل لـــه ســـختیو دراحـــت غیـــرې تـــه تلـــل وي
وګرانـه غـازي زلمیـه هم بـه ستړیاوې دمنـزل وي

ډیـــرې ســـتړیاوې ســـتړیاوې بـــه وی ګرانـــه
دحـــق پـــه لار لار کـــې قدردانـــه
ستونزي زحمت به دې په وړاندې پـل پـه پـل وي
وه ګرانـه غـازي زلمیـه هم بـه ستړیاوې دمنـزل وي

کلـــک بـــه ولاړ ولاړ لکـــه تـــور غـــروې
هریو طوفـــان تـــه بـــه رهبـــروې
لکـــه خلیـــل پـــه ســـرو اوروبـــه ګډیـــدل وي
وه ګرانـه غـازي زلمیـه هم بـه ستړیاوې دمنـزل وی

دغـــه عـــادت عـــادت دانقـــلاب وي
خـــوراډیر ګـــران ګـــران یـــې هریوبـــاب وي
پـــه ډیـــرو ســـتونزو بـــه هـــدف تـــه رســـیدل وي
وګرانـه غـازي زلمیـه هم بـه ستړیاوې دمنـزل وي

ګرانه شهید شهید او که غازي شي
آه که زخمي زخمي او یا بندي شي
د خدای لپاره به هر څه په ځان منل وي
وګرانه غازي زلمیه هم به ستړیا وې د منزل وي

ګرانه غازي غازي ته به یې لولې
که د سنګر سنګر په لورې تللې
دزړه تسل به دې اشعار د وطن مل وي
وګرانه غازي زلمیه هم به ستړیا وې د منزل وي
ډیر کړاوونه تکلیفونه به دې مل وي
وه ګرانه غازي زلمیه هم به ستړیا وې د منزل وي

## مست شول بیاآمو فرات

مست شول بیاآمو فرات مستې یې څپې شولې
مست یې غورځنګونه شول مستې یې جذبې شولې

هاغه دې زلمي ولاړ الجهاد نعرې وهي
توري یې لاسو کې دي شپې وهي تیارې وهي
ویرکړې د تیارو زامن چپې یې چې شپې شولې

وخوځیدل شور کوي شول آمو فرات ځپان
ځي ورسره بدرګه جهادي زلمي کاروان
چیغې د پاڅون وهي دا سې انګازې شولې

ښکاري چې دا یون به وي ستروي عالمګیر به وي
نه به وي محدود ترچاعالمي بهیر به وي
جمعه بیا د سپین امام ستري قافلې شولې

سپین طالب په سپین میدان څه عجب اقدام کړی
دې یاغي نړۍ ته یې ځاي په ځای قیام کړی
بریدیې په تیارو وکړو لوړې حوصلې شولې

دغه جهادي خوځښت څومره لوی اثرلري
کفر تري خطرلري هم ترې درد سرلري
بیا د مسلمان امت کلکې ارادې شولې

دامستانه یون دي وي تونداوګړندی دې وي
دغه جهادي هیبت خور په دې نړۍ دې وي
مست به وطن مل وي بیا مستې ترانې شولې

# محمدهاشم ذاکر

محمد هاشم ذاکر پر ۱۳۵۷ل، کال دزابل ولایت دنوبهارولسوالۍ دلوړګي په سیمه کي دمولوي لطف الله اخندزاده په کورکي زیږیدلی دی. افغانستان ته دسرولښکروراتګ هجرت ته اړیستلي اودبلوچستان ایالت مسلم باغ ته کډوال شوي دي. مرحوم اخندزاده صاحب دسیمي په کچه مشهورعالم ؤ، دخپل مهال ویش سره سم به یې امامت، جهاداوتدریس کاوه. ذاکرصاحب لومړنۍ زده کړي له خپل مرحوم پلارڅخه ترلاسه کړي اومنځنۍ هغه یې په بیلابیلومدرسوکي دمختلفواستادانوڅخه بشپړي کړي دي، دقران کریم تفسیراوداحادیثودوره یې کراچۍ کي په احسن العلوم مدرسه کي کړې ده اودفراغت سند یې ترې ترلاسه کړی دی.

ښاغلی ذاکر دخپل والداوسلفو الصالحینوپرنقش قدم روان دښه استعداد، پاک احساس، روڼ فکراوښواخلاقوڅښتن ویښ مبارزځوان دی. په محراب کي امام، پرممبرواعظ، په سنګرکي مجاهد، په مدرسه کي مدرس اوپه ټولنه کي داعي اوشاعردی. له څوکلونوراهیسي شعرلیکي ډیرشعرونه یې لیکلي دي، خوتردمګړیه یې کومه شعري ټولګه نه ده چاپ شوې، شاعري یې ترډیره حماسي ده. پرافغانستان دامریکایې یرغل سره چي دډیروشیخانو، پیرانواوپروفیسرانوسترګي ډالرووبرېښولې، صلیبي یرغلګرېې مستأمنین وبلل اوفرض عین جهادیې په وړاندي په خپل لاس دځان هلاکت باله، ذاکردهغوګوتوپه شمارشاعرانوپه کتارکي ؤ چي دخپلي خاوري، هویت، تاریخ، ارزښتونواواسلامي اوملي منافعودساتني په موخه یې ځوانان راننګول چي دخپلونیکونواوپلرونوپه څېردبهرنیوتاړاکګروپرضدودریږي اوله خپل حریم څخه یې په ټیټوسترګووشړي. هو! ذاکراونوروحقپالوشاعرانو دتاوده مورچل دمجاهدینوپه څېرچي ډیري سیمي یې ددښمن له وجوده پاکي کړي دقلم په څوکه له ډیرو اذهانوتیارې پورته کړي اوډیرزړونه یې فتح کړي دي. دذاکرډیري ترانې دهیوادوتلي ټولمنلي ترانه خوان ملافقیرمحمددرویش په خپل خواږه اوزړه راکښونکي ږغ نوري هم ښکلي کړي دي.

راشـه کښـینه زمالـه څنګـه جـام درواخلـه
زمـاد سروشـونډوله بنګـه جـام درواخلـه

دغزادتکبیرغـــــږدي روژه مــــات دی
دکوثرانـــــاري رنګـــه جـــام درواخلـــه

دعمرونوتنـــده ماتـــه کـــړه خمـــاره
ای دتوروغروملنګـــه جـــام درواخلـــه

دژونـــدللمي دي خړوبـــي کـــړې پـــه وينـــو
صـــدقه دي شـــم لـــه ننګـــه جـــام درواخلـــه

دذاکردســـــترګوتورتنکی شـــــهیده
دعنالـــه ســـپین پالنګـــه جـــام درواخلـــه

## دمنزل لاري

پـــه لمنـــه کـــې ســـتومانې قـــافلې وړي
دا دوینـــو طوفـــان څـــه تونـــدې څپـــې وړي
درنـــا وو دامـــام لښـــکې راغلـــې
پـــه بلاپســـې دنورســـپینې نیـــزې وړي
پـــه تنهـــاکو پـــل کـــوي دمنـــزل لارې
لا ترکومـــه پـــر اوږوو ویرجنـــې شـــپې وړي
عشـــقه بیـــا دي اوبـــوي خمـــارې هیلـــې

ليوني ګوره په سرباندې لمبې وړي
ستړي ستړي کليوال دلمرله غيږې
ښکاري بيا چيرته په لپوکې سپيدې وړي
تاريخونه يې دهرغشي له واره
په ځوليو کې رنګينې زمانې وړي
دغازي دلوړهمت له برکته
ذاکرځکه په غزل کې حماسې وړي

## ملغلرې

سپرليه ستا راتلو ته دي ساتلي ملغلرې
دژوند په کروندو کې دي کرلې ملغلرې
يو ځل بيا دملالو دزخمي امېل لپاره
دانه دانه راټولې کړه شيندلې ملغلرې
لمنې دغونډيو مو چې ښکاري مرمرينې
خو موږ لکه باران پرې اورولي ملغلرې
زموږ دځوانيمرګو مسافروهيلو چم نه
دي ډيرې دابد غيږې ته تللې ملغلرې
چې څانګو دچنار ته مروري زانې راشي
په څڼو کې يې کېږده ځليدلې ملغلرې
دوينو هريو څاڅکی ديوه جنت په بيه
دمينې په بازار کې دي پلورلې ملغلرې
چې جوړه ترې شهيدې ازادۍ ته غاړګۍ کړي
ذاکر دي دغزل په تار پيلې ملغلرې

# محمد اسماعیل عندلیب

محمد اسماعیل عندلیب دالحاج محمد ادریس مولوي زاده زوي د ۱۹۸۴ز، کال د فبرورۍ په میاشت کې د هجرت په کور (پېښور ښار) کې زېږېدلی دی .اصلي ټاټوبی یې د همېشه بهار ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د ګندمک کلی دی.

عندلیب صاحب په ۲۰۰۰ز، کال کې پېښور کې د الهجرت و الجهاد مدرسې څخه فارغ شوی ،بیا یې د ننګرهار ولایت په اسلامي پوهنتون کې یو کال د شرعیاتو په پوهنځي کي درس ویلی اوله هغې وروسته یې په پیښور( کبابیانو ) کې د الجنة الدعوة لخوا جوړ شوي د عربي ژبې په پوهنځي کې دوه کاله معهد ویلی دی، په ۲۰۰۳ز، کال کې د اسلام اباد نړیوال اسلامي پوهنتون د شرعیاتو او قانون په پوهنځي کې شامل شوی او پر ۲۰۰۸ز، کال ترې د لیسانس ددورې څخه فارغ شوی دی.

عندلیب دوېښ ضمیر،روښانه فکر،ښې مطالعې اوعالي تحصیلاتو خاوند هڅاند ځوان دی ،دخپل وران خوګران هیواد سره ښې کچې مینه لري ،پراتلولیو یې ویاړي خوپروران اوپرغمل شوي حالت یې ساندي وایي .له شعروشاعرۍ سره یې د کوچنیوالي څخه مینه وه ،که د شعرونوکوم کتاب به یې ولید ضرور به یې مطالعه کاوه اوکله کله خوبه یې د کوم شاعریانعت خوان څخه اوریدلی شعرله ځان سره هم پټ پټ زمزمه کاوه .د۱۹۹۲ز، کال څخه شعرلیکي ډیرشعرونه یې لیکلي خوکوم چې ورته معیاري نه دي ښکاره شوي نوهغه یې له منځه وړي اومعیاري هغه یې ساتلي دي ،عندلیب نه یوازي شاعر،بلکي لیکوال هم دی ،سیاسي اوټولنیزمضامین یې لیکلي اوپه ځینوورځپاڼواومجلوکي خپاره شوي دي . دغه رازپه سلګونو شعرونه یې پنځولي که راټول یې کړي نویوه پاموړمجموعه کیږي.

## هیـــواد

کـه پـه خیـرن بـدن چـا کلـه دی لړلـی هیـواد
پـه خپلـو پـاکو وینـو مـا ترینـه وینځلـی هیـواد

وحشي پوځونه چې په بد نیت په سرحد را اوښتي
ورتــه اور شــوی ورتــه قبــر ګرځیــدلی هیــواد

څنګـه یـې پریږدمـه پـه کـوم زړه ورنـه مـخ واړوم
چـا چـې ویـران کـړو پـه بمونـو راتـه ښکلی هیـواد

دلتـه الله تـه د کعبـې پـه لـور سجدې شـوې دي
څـه بـه قبولـه کلیسـا کـړي دا سـپیڅلې هیـواد

تــاریخ ګــواه دی تــرې نــړۍ ده سراســر خبــره
چـې یرغلګـرو پـه شـاتګ کـې دی سـتایلی هیـواد

د اســتعمار لښــکرکه څــومره زور او شــور ولــري
پـه قـوي عـزم کلـک ایمـان مـې دی سـاتلی هیـواد

ماتــل راوســتی انقــلاب دی د تکبیــر پــه چغــو
ورشـه لـږ وپوښـته پـردو تـه مـې ګټلـی هیـواد

اوس معرکــه شــروع کــوم نــوي غاصــب ســره زه
ځکه چې پـلار نیکـه پـر مـا بانـدې سپارلی هیـواد

د تــورې شــرنګ مــې لــر او بــر رابیــدار کــړي اول
د پـاڅون میـر دی پـاتې شـوی دا ښـاغلی هیـواد

پـه قربانـۍ د سـر او مـال بـه مو شـي خپـل او کـه نـه
ای عندلیبــه دې پــردو ګوتــو تــه تللــی هیــواد

## دزمانې کافر

ګرد يې چې د پښو زما په پاک بورجل کې پريوتو
عـزم د بـدلون مـې سمد سـتي ګوګـل کـې پريوتـو
هاغـه لکـه لـوړ چنـار زلمـې شـهيد بيګـا شـولو
لاړ لکـه شـبنم شـولو پـه غيـرډ ګـل کـې پريوتـو
بيـا شـول پسـې ليکـه يتيمـان پسـې صـفونه شـول
بابـا د شـهيدانو چـې زاړه مورچـل کـې پريوتـو
اوس هـم د موسـی پـه څیـر ژونـدي دي پاريـدلي دي
يـو بـل د زمـانې کـافر هغـې محـل کـې پريوتـو
څنګـه لا ژونـدی يـې غيرتـي افغانـه پورتـه شـه
لاس چـې د رقيـب سـتا د ليلـې اوربـل کـې پريوتـو
زه د ازادۍ لـــه نـــامې پـــټ شـــمه شـــرميږمه
غـلام ښـه پـه ښـکاره چې شـاهانه کابـل کې پريوتـو
اوس ايلـه قـوي شـوی عندليبـه اوس ژونـدی شـولې
يـو پيـر لکـه د روح غونـدې پـدې غـزل کـې پريوتـو

## نــــظـــــــم

يــو وخـت و چــې د ځمکــې لــر او بــر زمــونږه و
د وخت مهـار مـو لاس کې زمانـه زمـونږ پـه لاس کې وه
يــو وخــت و چــې د زړونــو ســلطنت الله راکــړې و
مـونږ ټـول و د يـو والـي خزانـه زمـونږ پـه لاس کـې وه

×××××

يـو وخـت و چـې لښـکر بـه د امـو لـه غـاړې پاڅيـده
زوږ بــه يــې دا ټولــه اسـيا پــه لــړزه راوســته
سـم لکـه د تنـدر بـه پـه کـور د غلـيم پريواتـه
نعـرو بـه د تکبيـر برطانيـا پـه لـړزه راوسـته



×××××

یـو وخـت و سـکندر هـم دلتـه کلـک ګـوزار خـوړلي و
یـو وخـت و چـې لښـکرې د چنګیـز دلتـه راګیـرې وې
یـو وخـت و هـره تیـږه وه مورچل او هـر یـو کـس غـازي
یـو وخـت و چـې لښـکرې د انګریـز دلتـه راګیـرې وې

×××××

یـو وخـت و چـې دې خـاوره کـې ډیـوه د علـم بلـه وه
دې بـه د دمشـق او د بغـداد سـره سـیالي کړلـه
نـاوې د ښـارونو ازل زمـونږ کالـه تـه راوړلـه
بیـا نـو پرمختـګ سـمه د بـاد سـره سـیالي کړلـه

×××××

یـو وخـت و چـې د سـرې بـلا پـه دې ځمکـه سـاه وختـه
هلتـه نـو تمـامې نـړۍ مـونږ تـه سـلامونه کـړل
غـږ د عظمتـو د افغـان ټـولې نـړۍ واوریـده
اواز د انقـلاب مـو رابیـدار محکـوم قومونـه کـړل

×××××

اوس مـو پـر هیـواد بانـدې پـردو منګـولې خښـې کـړې
نـور بـه نـو قصـې د میونـدونو زړه کـې نـه سـاتو
رنـګ رانـه کابـل د غـرب د لـوخ تمـدن واخیسـتو
عـزت بـه د شـملو د پلوونـو زړه کـې نـه سـاتو

×××××

وخـت د بغـاوت دی وخـت نعـره د انقـلاب غـواړي
خاوره مـو مسـتي غـواړي د وینـو سـره شـراب غـواړي
پـاڼو د تـاریخ کـې جـوړول یـو نـوې بـاب غـواړي
نـاوې د وطـن د ازادۍ تـازه ګـلاب غـواړي

# مریم اکمل ناصري

مریم اکمل ناصري دعبدالستارخان ناصري لورله اصله دلغمان ولایت دقرغیودد همزنګ کلي او سیدونکې ده ،خو په ۱۳۵۹ل ،کال کي دکابل په رحمان مېنه کي زوکړې ده .لومړنۍ او منځنۍ دیني او ښونیزي زده کړي یې ترسره کړي دي.

اغلې خورمریم ناصري دویښ وجدان اوروڼ فکرلرونکې هیوادپاله میرمن ده ،نشي زغملای چي هیوادوال یې په خپل وطن کي بندیان ،خوپردي پکي ازادوي .مریم هم دملالي میوندۍ په پیروي چي ویل یې:«که په میوند کي شهید نه شوې ،خدایږولالیه بې ننګۍ ته دي ساتینه ».ځوانانو ته پیغورورکوي ،چي نوردي په کورکي کښیني او په لاسوکي دي بنګړي ساتي ،ځکه چي دوی ژوندي دي خووطن زموږپردي ساتي .دغه رازناصري خپلوخویندوته هم ورپه زړه کوي ،چي مینه مي دخپل هیوادپه خړوړاګونوباندي ماتیږي ،نوزه پښتنه پیغله نیویارک اولندن څه کوم .داروپایانوپه څېرموډاوفیشن غندي ،خوپه خپله خړه لوپټه بیا ویاړي ځکه ددین اوحیاښنه یې بولي.

یمه پښتنه پیغله نیویارک اولندن څه کوم  
خپل وطن مي ښه دی دپردیووطن څه کوم  
خړه لوپټه کي مي ددین اوحیاښنه ده  
زه داروپاپه څیرموډاوفیشن څه کوم  
وایې«ناصري»وراني کوډلي موقصرونه دي  
زه دامریکاسپنیه ماڼۍ ،واشنګټن څه کوم

مریم ناصري څوکاله کیږي چي شعرونه لیکي ،داشعارولومړۍ ټولګه یې «دې کلي کي نه اوسم»پر ۱۳۸۳ل ،کال چاپ اوخپره شوه .دشعرڅوبېلګې یې په دې ډول دي.



## پر دي ساتي

څنګـه بـه سـترګي دلتـه جګـي نـورزلمي سـاتي
چـي دوی ژونـدي دي او وطـن زمـوږپردي سـاتي
څـه عجيبـه غونـدي حالـت دی يـم حيرانـه خلګـو
دلتـــه راغلـــي ګيـــدړان دي زمـــري ســـاتي
حقيقـت څـوک ويلـی نـه شـي داحـال چاراوسـته
دزورلاسـونه موپـه خولـه دي موږګـونګي سـاتي
زلموخوورکړامتحـان ګـوره پـوره يـې نـه کـړ
لـه د ښـه وروسـته دي ګودرکي سره منګي سـاتي
چي دوطن په درد ونه خوري نوپـه کوردي کښـيني
داسي ځوا نا ن دي پـه لاسونوکي بنګړ ي سا تي
دبـل دلاس لانـدي ژونـدون خومو قـانون کـي نشـته
پښتون خو تـل پـه خپلو و ينو خپلو ا کي سا تي
څـوک چي لـه عشـقه نـاخبر وي خودبـه روغ ګرځـي
څيـر ي ګر بـو ا ن خـو تـل د ميني ليـو ني سا تـي
کوردې ودان وي زوي دې لوي وي تل سرلوړی دې وي
چـــي د قلـــم ا ود بيـــان څـــوک آ زا د ي ســـا تـــي
نـوردي ګرځيـږي خوشـالي اوخنـدا ګاني دي کـړي
د و طـن غـم دي تـل پـه ز ړه کـي «نـا صـر ي» سـاتي

## نړیوالوته

مه ګوره په خوار وستر ګوزړه د آسیا یمه
زه دنړۍ بام یمه اوچت په ټول دنیا یمه
خیر که دوختونو تورو وریځو نن پټ کړی یم
بیا به شم ځلانده روڼ ستوری د سبا یمه
دلته انګریزان او صفویان په ګونډو شوي دي
کورد اکبرخان کورد میرویس او احمد شاه یمه
ځو مره ده نادان دوخت دښمن راته دامونه ږدي
نه ورځم په لاس کوتره نه یمه عنقا یمه
دین زما اسلام دی توکل هم په الله لرم
زه د شرق او غرب له ګواښونو بې پروا یمه
ما ډیر ظالمان دي پرځولي پرځوم به یې
زه هر یو فرعون ته رود نیل یمه موسا یمه
وایه «ناصری» دا پیژند لیک مي نړیوال وته
نه مي غلامي کړې او نه غلام د چا یمه

## خویندو!

درنو پښتنو خویندو خپل پت خپل عزت وساتئ
هر یو عمل مو مطابق د شریعت وساتئ
د ملالۍ نقش قدم باندي قدم کیږدئ
تل د پرده وله تجاوزه خپل ملت وساتئ
د نامحرمو او پردیو نارینه وو څخه
تل په پرده کي خپل سینګار او خپل زینت وساتئ

د پــرد و- پــر د وملکــو نــو کــو لتــو ر مــه منئ
داخپـل ملـي دوداودستورخپل افغانيت وساتئ
دآزادۍ پـه نامـه پـام چـي غلـط کـار ،ونـه کـړئ
ځانونه پوه تل په مانا د حريت و ساتئ
د «ناصري» د خولې خبري خوشي و نه ګڼې !
خپلو غوږو نو کي يې تل دا نصيحت و ساتئ

## وژړل

نـن مـي پـه خـواکي چـي جانـان وژړل
زړه کـي مـي پـټ راتـه ارمـان وژړل

ګـوري چـي ولچـک اوزولنوتـه مـي
زماپـه بـې وسـۍ هـم زنـدان وژړل

زمـاګلابي رنګوپرهروسـره
يوځـای وختونودرمـان وژړل

لارکـي رهزنانوشـوکولې ده
لـوټلې قـافلې تـه پاسـبان وژړل

ګـوري چـي سرخي دليلي دښتي تـه
بـاغ کـي هـم لالـه ارغـوان وژړل

دغـه درپـه دره افغانانوتـه
ای «ناصـري»وخـت اوزمـان وژړل

---

# مشفق حريتمل

## کفار تېښته کوي

سو به راوړي د حق لښکرې کفار تېښته کوي
ورته زلمو ور کړې ډغرې کفار تېښته کوي

نه رغونه شوه نه دلته امنيت تامين شو
شوې يې درواغ تو لې خبرې کفار تېښته کوي

اوس يې هر يو افغان په هر يو فريب ښه پوهيږي
اوس يې اثر نه کړي منترې کفار تېښته کوي

ولې به وي پرې واکمنان د غرب شوته سرونه
داپرګنې دي شملورې کفار تېښته کوي

وېتنام به يې خامخاوي هېر اوس د هلمند له لاسه
چې پکې يې ماتې شوې وزرې کفار تېښته کوي

نو ريې دغم زغم په ځانو باندې دو رلو نه دی
دومره يې بايلودې ککرې کفار تېښته کوي

دروغ، تبليغات، او د بري ناري يې نه مني څوک
اوس وهي نشي لاپې غورې کفار تېښته کو

مشفقه بيا به ګران هيواد کې شي خپلواکه ژوندون
بيا به شيبي شي بختورې کفار تېښته کوي

## ددارلاره

ګل ته چې ورځم نو راته خار لاره نيولې ده
ګران وطن کې هرلور ته اغيار لاره نيولې ده

خپور يې دغم جال کړ دمظلوم اولس په ژوندباندې
بيا غربي ظالم او ګنهګار لاره نيولې ده

مېندې به کړي بورې دانګرېز دميوند دښته کې
مخ ته ې داکبر غوندې سالار لاره نيولې ده

دروغ دي داوعدې ددوی چې مونږ بيا رغونه کړو
دوی فقط دقتل او بمبار لاره نيولې ده

مونږ دعشق سبق له سپارو ښخه زده کړې ده
ځکه مو منصور غوندې ددار لاره نيولې ده

خوښې موتياري نه دي مين دلمر په وړانګو يو
مونږه درڼا او سپين سهار لاره نېولې ده

دوی به هم دچا غوندې په دار شي څلور لارو کې
چا چې دبارک غوندې بادار لاره نيولې ده

ځو دحق په لاره په هيڅ شان يې پرېښودې نشو
مخته مو قاتل او که پاسدار لاره نيولې ده

نشته دي برې دشيطانيت او ددنيا په لار
ځکه نو مشفق دخدای(ج) دلار لاره نيولې ده

## دستم غېږه کې

تېږې ژوندون مې تقدیر میشت کړ دستم غېږه کې
راتویومه په ژړا دسترګونم غېږه کې

زمونږ ګلبڼونه دبارودو په ګردونو خړ دي
ګل لانېولی نه دی پرخې او شبنم غېږه کې

کله به ایل شو ذوالجلاله دظالم له پنجو
مونږ خو مودو نه یو نیولي یو سترغم غېږه کې

زمونږ بستر خاوری او کاڼي او ګردونه ښه دي
نوردې کړي خوب دخپل جانان او خپل صنم غېږه کې

منو چې وي به ګنهګار خو بیا یې هم وبخښه
خدایه نور واخله دا اولس دخپل کرم غېږه کې

له هغو اوښکو نه به جوړې مرغلرې شي چې
په ښه نیت تو ی کړي څوک دپاک رب دحرم غېږه کې

زه به له هغه خو ږ نسیم څخه مننه وکړم
چې مې دلبر ته سلام وړي دصبحدم غېږه کې

ورنه ټولنې ته ((مشفقه)) یو مشال جوړوم
دزړګي وینې اچومه دقلم غېږه کې

# نبیله غزل

کړې ګل غونډې خبرې زما یو د زنې خال
درزده به کړي سندرې زما یو د زنې خال

زرګرې لرې لرې ، جیګې جیګې سترګې مه وړه
ستا تولې ملغلرې زما یو د زنې خال

دا دومره صلیبیان او دا طالب غریب تنها
بانه دې زغرې زغرې زما یو د زنې خال

ستا زړه ته ګنا نه شته که درزونه کړي پیدا
رانګې کړې کمرې زما یو د زنې خال

زه ستا له دې کجلو او سرخۍ نه په زر وار
بهتر ګڼم ملګرې زما یو د زنې خال

## غزل

نه یم په دې چې مې بانه په جنګ کې و نه لویږي
په دې ډاربږم چې مې زړه په جنګ کې و نه لویږي
بیرغ او چت نیسه ، دمه مه شې زخمي لالیه
خو چې غرور د پښتانه په جنګ کې و نه لویږي
د انتقام لمبې دې مړې مه شه ملالې خورې
چېرته ځلمي نه شي ساړه په جنګ کې و نه لویږي
چې درځم زلفو ته چونډ کې جوړوم ګرانه چې

رانه خنجر ، رانه چاړه په جنګ کې و نه لویږي
سترګو په توره شپه په کاڼو زړو کې لارې وکړې
خدایه چې اوس په لمرخاته په جنګ کې و نه لویږي
د غزل اوښکې د لېمو په شپول کې نغاړه ګله
دا سره غمي د ژوندانه په جنګ کې و نه لویږي

## نانځکې او تمانچې

منم شاعره وروره
دا ستا خبره په سر سترګو منم
ستا قضاوت پر حقیقت ولاړ دی
زه دا منمه چې کوچنۍ ومه نو
پلار به مې ما وته نانځکې راوړې
او زما مشر لالکو ته به یې
سرې تمانچې راوړې ، ټوپکې راوړې
زه دې نیوکه په سر سترګو منم
د ښځینه شاعرې
د شعر احساس
او د شعر ژبه باید
داسې لطیفه داسې نرمه وي
لکه د نجونو د نانځکو په شان
دومره خوږه دومره شیرینه وي
لکه زما د دې کوچني ورورکي
د سرو غومبورو د مچکو په شان

******
زه دا منمه چې کوچنۍ ومه نو
پلار به مې ما وته نانځکې راوړې
او زما مشر لالکو ته به یې
سرې تمانچې راوړلې جنګ لپاره
ستا له شنني او څېړنې نه جار
نو له همدې لامله
یو نارینه شاعر
د دې وړتیا لري چې ولیکي
انقلابي شعرونه
له جذبې ډک او حماسي شعرونه
یا هم کولی شي چې وستایي
د شعر پر ژبه ټوپکونه ، تورې ، زغرې او د غچ خبرې
پر غلیمانو د یرغل او د وطن د ازادۍ سندرې
ځکه چې
د نارینو په احساس باندې او فکر باندې
د کوچنیتوب د تمانچو اثر
د ډزو اثر
تر ډېره وخته پورې پاتې وي

*******
زه دا منمه چې کوچنۍ ومه نو
پلار به مې ما وته نانځکې راوړې
زه دې خبره په سر سترګو منم
زما د شعر پر چینه

باید د مینې او الفت او ښځینه عاطفې
او لطافت سیوری راخور اوسي
زما د شعر نغری دې
خالي د جنګ او د غزا له سرو لمبو اوسي ، له اور
اوسي

**********
زه دا منمه چې کوچنۍ ومه نو
پلار به مې ما وته نانځکې راوړې
ما له نانځکو سره لوبې کړي
که رشتیا ووایمه
اوس هم نانځکې لرم
اوس هم ماشومتوب خوښوم
ښکلی ژوندون د سپېڅلتوب خوښوم
خو دا په شعرکې مې چې کله کله
توره را اخلمه ، غزا کوم یا ویر جوړوم
د دې وطن د دې ملت د درد تصویر جوړوم
دا هم پر ما د ماشومتوب د شېبو
او د ژوندي ماحول
یو رنګ تاثیر وګڼه

********
زه دا منمه چې کوچنۍ ومه نو
پلار به مې ما وته نانځکې راوړې
او زما مشر لالکو ته به یې

سرې تمانچې راوړې ، ټوپکې راوړې
زما شاعره وروره
په دې پوهېږې چې:
پلار به مې ولې لالکو ته تمانچه راوړله؟
زما په یاد په دې خاطر چې څوک
يې د کوچنۍ خورکۍ
ښکلې نانځکې په ژړا نه کړي
یا يې د پورې کلي
هغه خپل سري بدماشان ماشومان
په سپو ونه داړي
یا يې د خور د ناوکۍ نانځکې
د هغه ګل غوندې تنکۍ نانځکې
د ورا په ورځ یا د نکریزو په شپه
د پورې کلي بدماشان ماشومان
کاڼي و نه وروي
ناوې شهیده نه کړي
نو د همدې لپاره
پلار به مې ورور ته تمانچه اخیسته
چې حفاظت مې د نانځکو وکړي.

*******

زما شاعره وروره
که زما شعر کې جذبه ډېره لطافت کم دی
دا هم پرما د کوچنیتوب د شپږو

پاتې اغېز وګڼه
ځکه چې کله به مې ورور نه وه
یا به ویده وه یا به کور نه وه
ما به یې پټه تمانچه کړه ورنه
غوښتل مې خپله هم زړوره اوسم
ما به وې خدای مه کړه
که زه سبا چېرته بې وروره شمه
بې لوپټې شمه سرتوره شمه
نو چې د خپلې ناوکۍ نانځکې
د حفاظت جوګه په خپله اوسم.

*****

زما شاعره وروره
ستا نقد په سر سترګو
ستا له شننې نه جار
خو دا پر ما د کوچنیتوب د شېبو
پاتې اغېز وګڼه
او د حالاتو هم همدا غوښتنه
د ملت درد انځورول غواړي
لکه نانځکې پشتنې ناوکۍ
په تمانچو باندې ساتل غواړي

## ولي الله ذهين

### دکوثر جام

بیا د تورو شپو سینه باندې خنجر ږدي
دې تورتم جهان ته لمر بیا سپین سحر ږدي

دا دغرب شیطان ته خدای په قهرشوی
چې ناپاک قدم دپاک افغان په در ږدي

زار قربان شم دفدا جانان له مینې
په ژوندون چې سروو اورونو ته ټټر ږدي

دزخمي طالب به ما ته شي پرې تنده
حورې ورانده ورته جام چې دکوثر ږدي

دافغان عظمت به بیا په جهان راشي
ګنهګار جهان به بیا کابل ته سر ږدي

دافغان ځوا کونه چارچاپیر ترې تاو دي
پرمرۍ دمیکناټن توره اکبر ږدي

دلته هرڅوک چې راغلي دي ذهینه
بیا په سد شي پل پرلاره برابر ږدي



## نــــنــــواتي

بيــا ديوسف دخلاصون زيري له کنعـــانه راځي
يعقوب تـــه کېږي به الهـــام چي لــــه زندانه راځي

بيـابه مغـــرور مغـــرور ســـرونه په نيزوکې اخـلو
چي مـــو نصـرت ته بيا ځواکـــونه له اسمانـــه راځي

نـور بــه ياغي جهان وي زموږ دحق تر توري لاندي
بيـــا دشـــلم قـــرن فـــاتح له خــــراسانــه راځي

بيـــا به ثالث عــــمر دحـــق پـــه منبر چيغـه وکړي
نـــور خلافت دی، ټول احـکام به لـه قـــرانه راځي

چي په لاسو کې ذوالفقار لرو او زړو کي ايمـــان
ذهينه خــــود بــه ننـــواتي لــــه جهـــانــه راځي